


**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ریاضي د ښوونکي لارښود

## دریم ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۳ هـ. ش.



د ریاضي د ښوونکي لارښود

دریم ټولګی





moe.curriculum@gmail.com




**ليکوالان:**

**سر مؤلف الحاج عبدالله شاه**

**سر مؤلف امان الله**

**ښوونمل محمد حسين (محسنی)**

**غلام رضاء (اعظمی)**

**ژباړونکی:**

**سر مؤلف نظام الدين**

**اډيټور:**

**محمد سهراب ديدار**

**د څارنې کميټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساينس مرکز معين
- دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول
- سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

- **ديزاين:** سيدکاظم (کاظمی)



## سرود ملی

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

## ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکیږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودونو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او برياوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود د کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# فهرست

| سر لیک | مخ |
|---|---|

# سرلیک: د عددونو د مقامي قیمت تقویه

**لومړۍ لوست، (۱–۳) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی د مقامي قیمت له مخې یو رقم په اړوند مرتبو کې تشیخص کړای شي.

**اصطلاح ګانې:** مقامي قیمت، یو رقم، مرتبې.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي او نور د چاپیریال ساده مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! هدایت ورکړئ چې زده کوونکي په درې ګروپونو وویشل شي، ترڅو له ګروپونو سره بلدتیا پیدا کړي. بیا دې په وار سره په ګروپونو کې یو بل ته ځانونه ور وپیژني. تر څو له یو بل سره پیژندګلوي او بلدتیا پیدا کړي. بیا دې د ریاضی د مضمون په برخه کې، چې په تیر کال کې یې لوستلی دی، په یوازې توګه معلومات ورکړي. د خپل کتاب د ساتلو په برخه کې دې پام وکړي. په کتاب کې دې لیکل نه کوي ترڅو په راتلونکي کال کې هم له کتاب څخه کار واخیستل شي. ښاغلی ښوونکی دې د لوست له پیل څخه د لوست تر پای پورې په ټولګی کې څارنه او مراقبت وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشي. لومړی ګروپ دې له لرګوټو څخه یو بنډل سلګون، یو بنډل لس ګون او یو، یو دانه یې په ترتیب سره په خپل میز باندې کیږدي. دویم ګروپ دې د کتاب د مخ سره سم یو بنډل سلګون، ۴ بنډله لس ګوني او ٦ یو دانه یې په خپل میز باندې تیار کړي، او همدارنګه دریم ګروپ دې یو بنډل سلګون، دوه بنډله لس ګوني او ۴ یو دانه یې په خپل میز باندې کښیږدي. ښاغلی ښوونکی دې د ګروپي کار په وخت کې له هغو سره مرسته او ورته لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن په وار

لومړی فصل

د عددونو مقامي قیمت

لومړی لوست : د عددونو مقامي قیمت

هدف:زده کوونکی د یوه رقم مقامي قیمت په اړوندو مرتبو کې تشخیص کړاي شی.

ګرانو زده کوونکو! تاسو مخکې د یویزو، لسیزو او سلیزو مرتبې پیژندلې دي دا چې د عددونو په لیکلو کې د مرتبو پیژندل مهم دي یو ځلي بیا د هغو یادونه کوو.




پورته شکل د ۱۴٦ عدد راښیي په داسې حال کې چې ٦ دانې غنم د ٦ عدد، او ۴ وږي ۱۰ دانه یې د غنمو د ۴۰ عدد او لس وږی لس دانه یې د غنمو د ۱۰۰ عدد راښیي چې په جدول کې په لاندې توګه ښودل کیږي.

| سلیز | لسیز | یویز |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ۴ | ٦ |



سره د ټولګی مخې ته را وغواړي چې خپل کار په یوه جدول کې په دړې باندې تشریح کړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۲) مخ ته را وګرزوي له لارښوونی وروسته دې د کتاب لومړۍ پوښتنه لومړي ګروپ ته، دویمه پوښتنه دویم ګروپ ته او دریمه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړي ترڅو وکولی شي د رسم شوي شکلونو څخه په کار اخستنې سره تش ځایونه په ټولګی کې ډک کړي او اړوند عددونه په جدول کې وښیي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو تن خپل کار نورو زده کوونکو ته تشریح کړي. او ښوونکی دې د کار څارنه وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شوی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه، له زده

۱. لاندې شکلونه په نظر کې ونیسئ د هغو له مخې لاندې تش ځایونه ډک کړئ.

۴ یویز ۲ لسیزاو ۱۰ سلیز، ټوله ۱۲۴ کیږي.

لاس ته راغلی عدد څو رقمي دئ؟ دغه رقمونه د لاندې جدول په اړوند مرتبو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| | | |

۲. لاندې شکلونه په نظر کې ونیسئ د جدول تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړئ.

۳لسیزاو ۲ سلیز ۲۳۰ کیږي دا عدد په لاندې جدول کې ولیکی.

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۰ | ۳ | ۲ |

۳. د لاندې شکلونو له مخې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډك کړئ.

۷ یویز ۰ لسیز ۶ سلیز ټول ۶۰۷ کیږي دا عدد په لاندې جدول کې وښیاست.

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۷ | ۰ | ۶ |

۲

پوښتنې:

۱_ د لاندې مثال سره سم تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډك کړئ

مثال: ۸ یویز ۹ لسیز ۳ سلیز ۳۹۸ کیږي.

۶ یویز ۵ لسیز ۹ سلیز ۹۵۶ کیږي

۹ یویز ۹ لسیز ۸ سلیز ۸۹۹ کیږي

یویز
لسیز
سلیز

۲_ د لاندې مثال څخه په کاراخستنې سره تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډك کړئ.

۱- مثال: ۷۸۲ = ۲ یویز ۸ لسیز ۷ سلیز

۲- مثال:

۸۹ - ۹ یویز ۸ لسیز ۰ سلیز

۷۰ - ۰ یویز ۷ لسیز ۰ سلیز

۲۰۶ - ۶ یویز ۰ لسیز ۲ سلیز

۷۶۰ - ۰ یویز ۶ لسیز ۷ سلیز

۹۵۲ - ۲ یویز ۵ لسیز ۹ سلیز

یویز
لسیز
سلیز

۳_ لاندې هر یو عدد په خپلو کتابچو کې په رقم سره ولیکئ.

دوه اویا ← ۷۲

پنځه سوه څلوراتیا ← ۵۸۴

دوه سوه پنځه دیرش ← ۲۳۵

شپږ پنځوس ← ۵۶

اووه سوه څلور څلويښت ← ۷۴۴

پنځه سوه درویشت ← ۵۲۳

یویز
لسیز
سلیز

۳

کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي:

**پوهه:**

– څوک وایې چې (۶) یویز، (۵) لسیز او (۹) سلیز کوم عدد ښیې؟

– څوک وایې چې (۹) یویز، (۹) لسیز او (۸) سلیز کوم عدد ښیې؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د (۸۹) عدد د جدول، تش ځایونه ډک او په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| یویز | لسیز |
| --- | --- |
| | |

– زده کوونکي وکړای شي د (۲۰۹) عدد د جدول د تشو ځایونو په اړوندو مرتبو کې ولیکي.

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| | | |

**ذهنیت:**

زده کوونکي د یویزو، لسیزو او سلیزو د مرتبو او ارقامو په پیژندلو سره خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د ارقامو په پیژندلو په مرتبو کې د هغو په لوستلو، لیکلو سره کولی شي په لویو عددونو کې کار واخلي او له نورو سره مرسته وکړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي له لاندې عددونو څخه هر یو په خپلو کتابچو کې په رقم سره ولیکي او د هر رقم ارزښت دې په اړوندو مرتبو کې وښیئ.

# سرلیک: د عددونو د مقامي قیمت تقویه

**لومړی لوست، (۴–۵) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقې)**

**هدف:** زده کوونکی یو رقم د مقامي قیمت له مخې په اړوند مرتبو کې تشخیص او ولیکلی شي.

**اصطلاح ګانې:** مقامي قیمت، یو رقم، مرتبې.

**د لوست مرستندوی مواد:** چوټ، لرګوټې، چارتونه او نور محیطی ساده مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. کومې اشتباګانې چې د ګروپونو په واسطه پیدا کیږي په دړه باندې دې ولیکل شي. او زده کوونکو ته دې اجازه ورکړل شي چې خپل دلیلونه ووایې. بیا دې ښاغلی ښوونکی صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه په دړې باندی ولیکي. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي. او زده کوونکو ته دې وخت ورکړل شي چې د کتاب (۴) مخ کې د (۴) ګڼې پوښتنې خپلو کتابچو ته نقل او حل یې کړي. او له زده کوونکو څخه دې دا لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: د ۷۴٦ او ٦۴۲ هر یو عدد دې ولولي او بیا دې په تورو باندې ولیکي.

دویم ګروپ: د ۷۰۷ او ۱۲۳ هر یو عدد دې ولولي او بیا دې په تورو باندې ولیکي.

دریم ګروپ: د ۹۰۲ او ۴۳۰ هر یو عدد دې ولولي او بیا دې په تورو باندې ولیکي.

له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن خپلې حل کړې پوښتنې نورو ګروپونو ته تشریح کړي او په دې برخه کې دې آزاد بحث او خبرې اترې وکړي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته دې ورسره وشي.

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۴) مخ ته راوګرزوي له لارښوونې وروسته دې (۵) ګڼه

۴_ لاندې عددونه ولولئ او هر یو په خپلو کتابچو کې په حروفو ولیکئ.

| | |
|---|---|
| ۷۴٦ | اووه سوه شپږ څلویښت |
| ٦۴۲ | شپږ سوه دوه څلویښت |
| ۷۰۷ | اووه سوه اووه |
| ۹۰۲ | نه سوه دوه |
| ۴۳۰ | څلور سوه دیرش |
| ۱۲۳ | یو سلو درویشت |




۵_ د ۴، او ٦ په عددونو سره څو دوه رقمي عددونه لیکلای شئ؟ ځواب: ٦۴، ۴٦

٦_ د ۲۰۰ او ۲۵۰ عددونو په منځ کې ټول هغه عددونه چې د ۵ رقم ولري ولیکی. ځواب: ۲۰۵، ۲۱۵، ۲۲۵، ۲۳۵، ۲۴۵

۷_ فهیم ۳۳ افغانی لري له ښي لوري د ۳ رقم ته او هم د کیڼ لوري د ۳ رقم ته ځیر شئ.

الف : وواياست چې دا دواړه رقمونه یو له بله سره څه توپیر لری؟ ځواب: یو یې یویز یعنی ۳ دانې او بل لسیز یعنی ۳۰ ښیې.

ب : د دواړو رقمونو ارزښت یو شئ دئ؟ ځواب: لومړی یې ۳ دانې او دویم یې ۳۰ ښیې.

ج : د نوموړی عدد ښي او کیڼ لوري ته رقمونه په عملي توګه د لرګوټو په واسطه وښیاست؟




د : د نوموړی عدد رقمونه په چوکات کې وښیاست.



هه: د ۱۰۰ عدد په چوکات کې وښیاست.

۴

پوښتنه لومړی ګروپ ته، (٦) ګڼه پوښتنه دې دویم ګروپ ته او (۷) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په ټولګي کې یې حل او خبری اتری پری وکړې. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن خپل ګروپیز کار په ټولګي کې نورو ته تشریح کړي. زده کوونکي دې له پوښتنو او ځواب ورکولو سره خپل قناعت حاصل کړي. د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! د لوست د کتاب په (۵) مخ کې اتمه پوښتنه چې عددونه ورکړل شوی دې ګروپونو ته ورکړې چې په عملي توګه یې په چوټ کې وښیې او د دې مخ اړوند تش ځایونه ډک کړې په داسې حال کې چې د (الف، ب) برخه لومړي ګروپ ته، د (ج، د) برخه دویم ګروپ ته او د (هـ، و) برخه دریم ګروپ ته ورکړل شي چې تش ځایونه یې ډک او بیا یې حل کړي، او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن خپل ګروپیز کار نورو ته تشریح کړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۵) مخ ته را وګرزوي درې تنو زده کوونکو ته دې درې کارتونه ورکړل شي او هغوی دې خپل ځایونه له یو بل سره بدل کړي او زده کوونکی دې په هر بدلون کې هغه لیدلی عددونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. په پای کې دې ولیدل شي چې څو عددونه په لاس راغلي. د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی ورسره مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې ورسره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د چوټ مرتبې ښیي؟ او څوک د ۷٦۲ عدد په چوت کې ښیي؟

– څوک د ٦۷۲ عدد په تورو سره لیکي او څوک کولی شي دری سوه دوه نوی په عدد سره لیکي؟

– څوک د ۴۴۴ په عدد کې د هر رقم مقامي قیمت ښیي؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي د ۴۵٦ عدد په اړوند مرتبو کې ولیکي.

– زده کوونکی وکړای شي لاندې عددونه په تورو یا توري په عددونو سره ولیکي.

۱۴۲ ۳ ۲۲۳ ۲ ۴۵۸ ۱

دوه سوه لس ③ یو سلو شل ② سل ①

**ذهنیت:** ◯ ◯ ◯

د عددونو د مقامي قیمت څخه په کار اخستنې سره زده کوونکي عددونه لوستلی او لیکلی شي او خوښي ښکاره کوي؟

یویز لسیز سلیز

۸_ لاندې عددونه په نظر کې ونیسئ.

الف _ د ٦٦ په عدد کې څو یویز او څو لسیز شتوالی لري؟ ځواب: ٦ یویز او ٦ لسیز دي.

ب _ د ٦۰٦ په عدد کې څو یویز، څو لسیز او څو سلیز شتوالی لري ځواب: ٦ یویز، صفر لسیز او ٦سلیز دي.

ج _ د اووه نوي په عدد کې څو یویز او څو لسیز شتوالی لري؟ ځواب: ۷ یویز او ۹ لسیز او شتوالی لري.

د _ د اته سوه په عدد کې څو یویز او څو لسیز شتوالی لری؟ ځواب: صفر یویز، او صفر لسیز شتوالی لري.

هـ _ : د دوه رقمي تر ټولو کوچني عدد کې څو یویز او څو لسیز شتوالی لري؟ ځواب: صفر یویز او یو لسیز شتوالی لري.

و _ د دوه رقمي تر ټولو لوي عدد کې څو یویز او څو لسیز شتوالی لري؟ ځواب: ۹ یویز او ۹ لسیز شتوالی لري.

د زده کوونکو فعالیت په ټولګی کې

دلاندې شکلونو یا کارتونو په ډول د ۳،۲،۱ عددونه په نظر کې ونیسئ څو څو دری رقمي عددونه لیکلای شئ، او هم د هغو تر ټولو د کوچنی او تر ټولو د لوي عددونو نمونه واخلئ.

۱ ۲ ۳

| | | |
|---|---|---|
| ۲۱۳ | ۱۳۲ | ۱۲۳ |
| ۳۲۱ | ۳۱۲ | ۲۳۱ |

تر ټولو کوچنی عدد ۱۲۳ تر ټولو لوی عدد ۳۲۱

۵

**ارزښت:**

څرنګه چې د عددونو د مقامي قیمت پیژندنه د پوهې بنسټ دی د ریاضي په پوهیدو سره خپل او د نورو ورځنی ستونزې حل کوي او کولی شي یویز، لسیز او سلیز په عددونو کې وښيي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د ۴، ۵ او ٦ عددونه په نظر کې ونیسي هغه دې د یویزو، لسیزو او سلیزو په مرتبو کې څو واري یا څو مرتبې ځای په ځای کړي څو عددونه دې ورڅخه جوړ کړي هر یو زده کوونکی دې ولیکي او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د عددونو د مقامي قیمت تقویه

**لومړی لوست، (٦، ٧، ٨) مخونه**

**دریمه برخه**

**وخت: ٢ ساعته (٤٥ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي په اړوند مرتبو کې د یوه رقم مقامي قیمت تشخیص کړای شي.

**اصطلاح ګانې:** مقامی قیمت، ارقام، مرتبې.

**د لوست مرستندوی مواد:** کارتونه، چوت، لرګوټې او نور محیطی ساده مواد.

**١– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په غور سره وګوري اشتباګاني دې په درې باندې ولیکي. صحیح او سم ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي، په پای کې دې ښاغلی ښوونکی صحیح ځوابونه په تختې باندې تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو وویشي او هر ګروپ ته دې درې، درې رقمونه ورکړي چې د تیر لوست د مشق او تمرین سره سم د هغو اړوند عددونه ولیکي. او همدارنګه هر ګروپ دې لوی عدد او کوچنی عدد وښیې. هر ګروپ چې له خپلو رقمونو څخه اړوند عددونه لیکلی دي. داسی دې ترتیب کړي چې د لوي عدد څخه د کوچنی عدد خوا ته ولیکل شي.

– ښاغلی ښوونکی! د هر ګروپ زده کوونکی دې د کتاب د (٧) مخ لومړۍ پوښتنه د مثال په ډول حل کړی او په خپل ګروپونو کې دې کار وکړي. او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن خپل ګروپي کار په تخته باندې تشریح کړي. او نورو ته دې معلومات ورکړي د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی ورسره مرسته وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې د کتاب د (٧) مخ د دویمې پوښتنې جدولونه په ګروپي ډول د حل شوی مثال په توګه ډک کړی. که چیري زده کوونکی ستونزی ولري ښاغلی ښوونکی دې ورته لارښوونه او مرسته ورسره وکړي.

**٢– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (٨) مخ ته را وګرزوي. د مثال له حل کولو وروسته دې (٣) شمېره پوښتنه زده کوونکو ته ورکړي. چې په ګروپی شکل پرې کار وکړي. او ښاغلی ښوونکی دې د کار څارنه وکړي. د ستونزو د شتوالی په صورت کې دې له هغو سره مرسته او ورته لارښوونه وکړي.

**٣– آرزونه:**

ښوونکی د خپل ډاډ له پاره چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی ده او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې دا لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وشي.

---

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو درې تنه د ټولګي مخې ته ودروي. او هریوه ته دې د ١، ٢، ٣ یو یو کارت ورکړي. او له هغو څخه دې وغواړي چې خپل اړوند کارت دې خپل ټولګیوالو ته وښیي. بیا دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. تاسو د کارتونو په واسطه کوم درې رقمی عدد لیکلای شئ. په دویم واري دې د زده کوونکو ځایونه بدل کړی، او لاس ته راغلی عدد دې په جدول کې ولیکی په همدی ډول دې د ځایونه بدلولو ته ادامه ورکړي او د هر بدلون عدد دې په جدول کې ولیکي تر هغه وخت پورې چې لاس ته راغلی عدد تکرار رانشي. او په پای کې دې وشمیرې چې څو درې رقمی عددونه د ١، ٢، ٣ عددونو څخه لاس ته راغلي دي او یو له بله سره دې پرتله کړي. د مقامي قیمت یا مقامی ارزښت په نظر کې نیولو سره دې ترتیب کړي.

**کورنۍ دنده**

د ٤، ٥، ٦ عددونو څخه څو درې رقمی عددونه لاس ته راځی په خپلو کتابچو کې ولیکی.

ځواب: ٦٥٤، ٦٤٥، ٥٤٦، ٥٦٤، ٤٥٦، ٤٦٥



د زده کوونکو فعالیت په ټولګی کې

۱- د مثال په توګه دواړه مساوي عددونه په خپلو کتابچو کې یو له بله سره ونښلوئ.




۲- د حل شوي مثال څخه په کار اخستنې سره د ښي لوري جدولونه د کیڼ لوري له جدولونو څخه داسې بشپړ کړئ چې هر رقم یې په خپله مرتبه کې راشي.

مثال:

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۲ | ۴ | |

→

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۱۲ | ۳ | |

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۳ | ۷ | ۱ |

→

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۳ | ۱۷ | |

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۳ | ۱ | ۲ |

→

| یویز | لسیز | سلیز |
| --- | --- | --- |
| ۱۳ | | ۲ |

۳- د لاندې مثال په ډول د پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

مثال: د ۳۵ د عدد ارقام په کومو مرتبوکې دي؟ (۵ د یویزو په مرتبه کې او ۳د لسیزو په مرتبه کې).

- د ٧٦ د عدد ارقام په کومو مرتبو کې دي؟ ٦ د یویزو په مرتبه کې او ٧ د لسیزو په مرتبه کې.
- د ٦۴۵ د عدد ارقام په کومو مرتبو کې دي؟

ځواب: ۵ د یویزو په مرتبه کې، ۴ د لسیزو په مرتبه کې او ٦ د سلیزو په مرتبه کې.

۷

په خپله خوښه یو عدد ولیکئ چې په هغه کې یویز، لسیز شتوالی ولري او وواياست چې دا عدد څو رقمي دی؟ ۸۵

ځواب: پنځه اتیا

- په شمیرلو کې د ۵۹ له عدد څخه وروسته کوم عدد راځي؟

ځواب: د ٦۰ عدد.

- په شمیرلو کې د ۹۹ له عدد څخه وروسته کوم عدد راځي؟

ځواب: د ۱۰۰ عدد.

- په شمیرلو کې د ۹۹۹ له عدد څخه مخ کې کوم عدد راځي؟

ځواب: د ۹۹۸ عدد.

- د ۹۹۹ عدد څو رقمي دی؟

ځواب: دري رقمې دی.




د ۴۰۰ او ۵۲۰ په منځ کې هغه عددونه ولیکی چې د یویز و رقمونه یې ۵ وي؟

ځواب: ۴۰۵، ۴۱۵، ۴۲۵، ۴۳۵، ۴۴۵، ۴۵۵، ۴٦۵، ۴۷۵، ۴۸۵، ۴۹۵، ۵۰۵، ۵۱۵







**پوهه:**

- څوک وایې چې د ۲۴۷ عدد څو یویز، څو لسیز او څو سلیز لري؟
- څوک د ۵۰۲ عدد د یوه جدول په اړوند مرتبو کې لیکي؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د ۷۴٦ عدد د لرګوټو د بنډلونو په واسطه ترتیب کړي.
- زده کوونکي وکړای شي د ۱۴۰ عدد په عملي توګه په چوټ کې وښیي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د یویزو، لسیزو او سلیزو د مرتبو په پوهیدلو، لوستلو او لیکلو سره رضایت او ډاډ تر لاسه کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د عددونو د مقامي قیمت په پوهیدو سره کولی شي چې په ورځنې ژوند کې ترې سم کار واخلي. خپلې او د نورو ستونزې دې حل کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

د کتاب د (۸) مخ هغه پوښتنه چې د کورنۍ دندې په توګه ټاکل شوې ده زده کوونکو ته دې ورکړل شي ترڅو حل او سبا ته دې له ځانو سره راوړي.

# سر لیک: اټکل او تخمین کول

**دويم لوست، (۹–۱۰) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي، مخکې تر شميرلو د تخمين په واسطه د شيانو اندازه په تقريبي توګه پيدا کړي.

**اصطلاح ګانې:** تجسس، تخمين، تقريبي، مقدار او اندازې.

**د لوست مرستندوی مواد:** لوبيا، وړې ډبرې، د کاغذ ټريشي او نور محيطي مواد.

**۱– فعاليتونه:**

– ښاغلي ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په غور سره ووينې. هغو زده کوونکو چې پوښتنې يې په صحيح توګه حل کړي دي د شادباش او آفرين، په ښو کليمو سره دې تشويق شي او هغو چې پوښتنې حل کړي نه دي يا يې اشتباه کړي ده په نرمو، او خوږو خبرو سره دې ورته لارښوونه وشي او تشويق دې شي چې کورنۍ دندې سرته ورسوي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو باندې وويشي او محيطي مواد دې په خپل ميز باندې کښيږدي، له هر ګروپ څخه دې يو زده کوونکی يوه اندازه مواد له حساب کولو پرته په يوه پاکټ او يا کڅوړه کې واچوي د ګروپ د ټولو غړو نومونه دې په اړونده ګروپ کې وليکل شي. هغو زده کوونکو چې کوم تخمين کړی دی د هغو تخمين دې د هغو نومونو ته مخامخ وليکي. بيا دې په پاکټ کې شيان د ګروپ د غړو په مخ کې وشميرل شي.

د هر ګروپ لومړی او دويم تن دې د ټولګي مخې ته را وغوښتل شي. دويم ځل دې د هغو په منځ کې، لومړی، دويم او دريم تن د هغو د تخمين له مخې وټاکل شي او ښه دې تشويق شي.

– ښاغلی ښوونکی دې دا فعاليت د دويم ځل له پاره د کتاب د (۱۰) مخ له هدايت سره سم په تکراري توګه په عملي ډول کار وکړي. او په پای کې دې د کتاب (۹) مخ د يوه زده کوونکی په واسطه ولوستل شي. او نور زده

**اټکل او تخمين کول**

**دويم لوست: تجسس او تخمين کول**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي مخکې تر شميرلو د تخمين په واسطه د شيانو مقدار په تقريبي توګه پيدا کړي. وروسته له دقيق شمېرلو قيمت يې وليکي.

موږ څنې وخت مقدارونه تخمين کوو او بيا د شميرلو په واسطه دقيقه اندازه د يويزو او لسيزو په شکل ټاکو. او ګورو چې زموږ تخمين په کومه اندازه حقيقت ته نژدې دی. په حقيقت کې تخمين کول يو هوښيارانه سوچ يا حدس دی چې د ذهن د انکشاف لپاره مهم ګڼل کيږي. عموماً په کورنيو کې د کوچنيانو د ساعت تيری د پاره ډيره ښه ده. مثلاً که چيرې په کورنۍ کې زرد آلو وخوړل شي او د هغو مندکې (زړي) سره يو ځای کړي او خپلو کوچنيانو ته ووايې. څو دانې موخوړلي دي؟ چا زياتې خوړلې دي؟ چا لږې خوړلې دي؟ هر يو د خپل ذهن سره سم يو عدد وايې په پای کې دقيق شميرل کيږي. او ليدل کيږي چې د کوم يوه تخمين حقيقت ته نژدی دی؟



۹

کوونکي دې واوري. که چيرې کوم زده کوونکی پوښتنه درلوده له ښاغلي ښوونکي څخه دې پوښتنه وکړي او حل دې په لاس راوړي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د ټولګي مخې ته په خپل ميز باندې يو لرګوټی داسې ځای کښيږدي چې ټول زده کوونکی يې وليدلی شي او د زده کوونکو پام دې ورته راواړوي. چې تر څو د لرګوټو اندازه خپلې حافظې ته وسپاري او په ذهن کې يې ونيسي بيا د همدې لرګوټو يوه نامعلومه بسته زده کوونکو ته وښيي. د هر ګروپ زده کوونکي دې خپل نومونه وليکي. د لرګوټو دا بسته چې د هغو مخې ته ايښودل شوې ده تخمين دې وکړي او شميره دې له خپل نامه سره وليکي.

ښاغلی ښوونکی! يو زده کوونکی را وغواړۍ تر څو د لرګوټو بسته د زده کوونکو په مخ کې وشميري او د هغو حقيقي شمير په تختې باندې وليکي. بيا دې زده کوونکي

خپل تخمین له حقیقي شمیر سره پرتله کړي او نمره بندي دې وکړي. ښاغلی ښوونکی دې هغه لومړی او دویم تن د ټولګی مخې ته را وغواړي چې تخمین یې حقیقت ته نژدې دی؟ همدارنګه په ګروپونو کې دې هم، لومړی ګروپ او دویم ګروپ وټاکل شي. او د مسابقي وړونکی دې تشخیص شي.

**۳- آرزونه:**

ښاغلی ښوونکی دې د خپل ځان ډاډمن کیدو له پاره چې زده کوونکي د تخمین په مفهوم پوه شوي دي؟ او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

**پوهه:**

- څوک ووایي چې تخمین څه ګټه لري؟
- هغه څوک چې وایې تخمین کول، ذهن ته پراختیا ورکوي خپل لاسونه دې پورته کړي.
- هغه څوک چې وایې تخمین کول کومه ګټه نه لري خپل لاسونه دې پورته کړي.

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د شیانو د دقیق شمیرلو څخه مخکې د تخمین کولو په واسطه، حقیقت ته نږدې او د شیانو اندازه په تخمیني توګه ووایې.
- زده کوونکي د تکراري تخمین کولو په واسطه وکولی شي د شیانو حقیقي شمیر ته نږدې شي.
- زده کوونکي وکولی شي دا ډول لوبې په خپل کورنیو کې وکړي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د دې ډول لوبې په کولو سره خوښي کوي او د شیانو له شمیرلو سره مینه پیدا کوي.

**ارزښت:**

د زده کوونکو ذهن پراختیا پیدا کوي. او په دقیق توګه تخمین کولی شي. څرنګه چې په مرکز او ولایتونو کې زیات پلورل او را نیول لکه د وابښو، د بڼ حاصلات، د څارویو شمیر، د ځمکو اجاره او نور په تخمیني ډول کیږي هغو کولی شي په ژوند کې د اړتیا په وخت کې ورڅخه کار واخلي.

مشق او تمرین

ښاغلی ښوونکی دې یو نا معلوم مقدار د لوبیا، یا د زرد آلو مندکې، د هندوانې یا ختکي او یا کدو زړې ټولګی ته راوړي او د ټولګی مخې ته دې کښیږدي، ټولو زده کوونکو ته دې وښیي. او هغه دې په یوه پاکټ یا کڅوړه کې واچوي بیا دې زده کوونکي په ګروپونو باندې وویشي داسې دې ورته ووایې.

۱. هرګروپ دې جدول وکاږي.
۲. د ګروپ هر یو تن دې د پاکټ یا کڅوړي د شئ مقدار په تخمیني توګه وټاکي. د زده کوونکو کار دی.
۳. دهر ګروپ جدولونه دې د ټولګی مخې ته ځوړند شي. د زده کوونکو کار دی.
۴. له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن راشي د پاکټ یا کڅوړی د ننه مواد دې داسې وشمیري چې لومړی دې، لس، لس جلا کړي چې څو لسه او څو یو دانه یې دي. د زده کوونکو کار دی.
۵. د شمیر حقیقي اندازه دې د ګروپونو د تخمین له جدول سره پرتله کړي. د زده کوونکو کار دی.
۶. کوم ګروپ او کوم زده کوونکی د مسابقی وړونکی کیږي هغه ګروپ او هغه زده کوونکي دې تشویق شي. د ښوونکی کار دی.

۱۰

**۴- کورنۍ دنده:**

هغه فعالیتونه چې زده کوونکو د تخمین کولو له پاره په ټولګۍ کې سرته رسولي دي په کور کې دې د خپلو کورنیو د ساده موادو په واسطه لکه زړې، نخود، لوبیا، لرګوټې او داسې نورو شیانو په واسطه په عملي توګه سرته ورسوي. او سبا ته دې خپل کار په ټولګي کې تشریح کړي.

# سرليک: د عددونو لوستل او ليکل له (۱۰۰۰) څخه تر(۱۰۰۰۰) پورې

**دريم لوست، (۱۱ – ۱۲) مخونه**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي چې عددونه له (۱۰۰۰) څخه تر (۱۰۰۰۰) پورې ولولي، وېې شميري او وېې ليکي.

**اصطلاح ګاڼي:** طبقه، مرتبې.

**د لوست مرستندوی مواد:** چوټ، د عددونو کارتونه، د طبقو چارتونه.

**۱– فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې له خو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي چې څه ډول د خپلو کورنيو له غړو سره د تخمين په برخه کې کار کولی شي او د کومو محيطي موادو په واسطه يې دا عمل سر ته رسولی دی، دا لوبه د تخمين کولو لوبه په خوښې او ښه توګه سره ومنل شوه او که څرنګه؟

– ښاغلی ښوونکی دې لارښوونه وکړي زده کوونکو چې پخوا د لومړۍ طبقې په برخه کې معلومات درلوده. اوس دې دويمې طبقې ته پاملرنه وکړي. لومړی ګروپ دې د ۱۶۴۵ عدد، دويم ګروپ دې د ۳۷۶۴ عدد او دريم ګروپ دې د ۹۸۷۲ عدد د خپل اړوند چوټ په واسطه وښيي، ودې شميري، بيا دې ولولي او ودې ليکي. که چيرې زده کوونکي ونشي کولی ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي. که چيرې د ګروپونو شمير زيات وي. ښاغلی ښوونکی دې له (۱–۹۰۰) پورې يو څو عددونه ورکړي چې په عملی توګه يې په چوټ کې وښيي هغه ولولي او وليکي.

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲) مخ ته را وګرزوي. هغه دې ولولي. د رسم شوو کارتونو له

دويم فصل

له (۱۰۰۰) څخه تر (۱۰۰۰۰) پورې د عددونو لوستل او ليکل

دريم لوست: د عددونو پيژندنه له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۰۰۰۰ پورې

هدف: زده کوونکي وکړای شي عددونه له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۰۰۰۰ پورې ولولي وشميري طبقې او اړوند مرتبې يې وپېژني او وليکي.

تا سو له ۱ څخه تر ۹۹۹ پورې ټول عددونه په دوهم ټولګي کې لوستلي ۹۹۹درې مرتبې لري دا درې مرتبې لومړی طبقه (ديويز وطبعيه) بلل کيږي. که چيرې په ۹۹۹ باندې د يوه عدد ور زيات کړو د ۱۰۰۰ عدد لاس ته راځي چې دا عدد څلور رقمونه لري چې څلورم رقم يې د (۱) عدد او په دوهمې طبقې پورې اړه لري تا سو په لاندې جدول کې دوه طبقې ليدلای شئ چې هره طبقه يې درې مرتبې د (يويز، لسيز او سليز) لري.

| | لومړی طبقه ( د يويزو طبقه) | | | دوهمه طبقه ( زريزو طبقه ) | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عدد | د يويزو مرتبه | د لسيزو مرتبه | د سليزو مرتبه | د زريزو مرتبه | د لس زريزو مرتبه | د سل زريزو مرتبه |
| ۹۹ | ۹ | ۹ | | | | |
| ۱۰۰ | ۰ | ۰ | ۱ | | | |
| ۹۹۹ | ۹ | ۹ | ۹ | | | |
| ۱۰۰۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۱ | | |
| ۲۰۰۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۲ | | |
| . . . . | . . . . | . . . . | . . . . | . . . . | | |
| ۹۰۰۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۹ | | |




مخې دې په ګروپې ډول د (الف، ب، ج او د) پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

– ښاغلی ښوونکی! څلور تنه زده کوونکي دې هغه کارتونه چې په هغو باندې د (۱، ۲، ۳، ...) عددونه ليکل شوي دي د ټولګی په مخ کې په خپلو لاسونو کې داسې ونيسي چې ټول زده کوونکي يې وليدل شي. بيا دې د (۱۲) مخ له فعاليت سره سم ځوابونه وليکي.

– ښاغلی ښوونکی دې لارښوونه وکړي چې زده کوونکي دې د طبقو چارتونه د کتاب له مخې ترتيب او په ټولګې کې دې وځړوي. او مختلف عددونه دې د لومړی طبقې په مرتبو کې د دويمې طبقې د زريزو تر مرتبې پورې وښيي که چيرې زده کوونکي وکولی شي ښه به وي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د لومړی او دويمې طبقو يو، يو جدول د کتاب د (۱۱) مخ د جدول په توګه

رسم کړی د ۴۷۰۶، ۸۰۰۳ او ۹۹۹۹ عددونه دې په اړوندو طبقو او مرتبو کې ولیکي.

او له هر ګروپ څخه دې یو، یو زده کوونکی خپل ګروپیز کارونه نورو زده کوونکو ته تشریح کړي که چیرې کوم ګروپ اشتباه ولري. د بل ګروپ په واسطه دې صحیح شي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شوی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي:

**پوهه:**

– څوک د ۴۷۲۵ عدد په طبقو او مرتبو کې ښیي؟

– څوک وایي چې د ۶۷۴۲ په عدد کې د ۶، ۷، ۴ او ۲ رقمونه په کومو مرتبو کې ځای لري؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د (څلو، زرو اووه سوه) عدد په رقم سره ولیکي او ویې لولي.

**ذهنیت:**

له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۰۰۰۰ پورې د عددونو په لوستلو، لیکلو، په طبقو او مرتبو کې د هغو ځای په ځای کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي، خوښي کوي او د لویو عددونو د زده کولو له پاره چمتو کیږي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د عددونو په پوهیدو سره کولی شي د ورځني ژوند د شیانو په پلورلو او رانیولو کې کار واخلي.

که چیرې اوس په دوهمه طبقه کې د یو زریزو مرتبې ته پاملرنه وکړئ لیدل کیږي چې د (۱) عدد په همدې طبقه کې دی او د لومړی طبقې ټولې مرتبې یې صفر دي چې یو زر لوستل کیږي. که چیرې د (۱) د عدد په ځای د ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸ او ۹ عددونه ولیکو د ۲۰۰۰، ۳۰۰۰، ۴۰۰۰، ۵۰۰۰، ۶۰۰۰، ۷۰۰۰، ۸۰۰۰ او ۹۰۰۰ عددونه حاصلیږي.

تاسو پوهیږئ چې د پورته عددونو صفرونه په لومړی طبقې پورې اړه لري که چیرې د لومړی طبقې د صفرونو په ځای د ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸ او ۹ مختلف عددونه ولیکل شي په دې صورت کې د ۲۰۰۱، ۲۰۱۱، ۳۰۶۳، ۴۰۲۰، ۸۲۵۱، ۹۹۹۹ ... عددونه په لاس راځي.




په ټولګي کې د زده کوونکو فعالیت

**مثال:** غواړو د ۱۷۰۶ عدد دیوه جدول په واسطه په مرتبو او طبقو کې وښیو.

| یوزریز | سلیز | سیز | یویز |
|---|---|---|---|
| ۱ | ۷ | ۰ | ٦ |




د یوزریزو مرتبه　　د سلیزو مرتبه　　د لسیزو مرتبه　　د یویزو مرتبه

الف: هغه عدد چې د پورتنیو ۴ کارتونو څخه په لاس راځي ولیکئ.

ب: نوموړی عدد څو رقمونه لري؟

ج: نوموړی عدد ولولئ او په تورو باندې یې ولیکئ.

د: د صفر کارت په کومه مرتبه کې موقعیت لري؟ د لوستلو په وخت کې تلفظ کیږي او که نه؟




**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ٦۴۵۰ | ۱۲٦ | ۹۹۹۹ |
| + ۳۵۵۰ | + ۹۸۷۴ | + ۱ |

## سرلیک: د عددونو لوستل او لیکل له (۱۰۰۰) څخه تر(۱۰۰۰۰) پورې

**دریم لوست، (۱۳– ۱۴) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي چې عددونه له (۱۰۰۰) څخه تر (۱۰۰۰۰) پورې ولولي، ویې شمیري او ویې لیکي.

**اصطلاح ګانې:** چارت، کارت، طبقې، مرتبې.

**د لوست مرستندوی مواد:** د کتاب د ۱۲ او ۱۳ مخونو شکلونه او جدولونه، د عددونو کارتونه، د طبقو چارتونه.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي. که چیرې اشتباه ګانې او غلطۍ موجودې وي په درې باندې دې ولیکل شي. او بیا دې د نورو زده کوونکو په واسطه په صحیح توګه حل شي او په انفرادي توګه دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي:

– محمد جان دې ووایي: که چیرې د جمعې په یوه عملیه کې د جمعې حاصل پنځه رقمي وي د جمعې د حاصل پنځم رقم باید په کومه طبقه او کومه مرتبه کې ولیکل شي؟

– عبدالله دې ووایي: ستاسو په کورنۍ دنده کې د پوښتنې د جمعې حاصل څو رقمي دی؟ د هغه رقمونه د طبقو او مرتبو په جدول کې وښیاست؟

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳) مخ ته را واړوي، لومړی، دویم او دریم ګروپونه دې د (۱، ۲، ۳) شمېره پوښتنې د کتاب له هدایت سره سم ځواب او اړوند جدولونه دې ډک کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې هر یو د (۱۴) مخ،







۱- د ۱۲۷۴، ۳۰۰۲ او ۲۰۵٦ عددونه ولولئ او په تورو یې ولیکئ د نوموړو عددونو رقمونه په خپلو کتابچو کې د لاندې جدول په واسطه په اړوند مرتبو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
| --- | --- | --- | --- |
| | | | |

۲- د یوزرو دوه، او وه زرو پنځه اتیا، او نه زرو اته سوه درې څلویښت عددونه په رقم سره ولیکئ او په جدول کې وښیاست چې د هر یوه په مرتبه کې کوم رقم راغلی دی؟

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
| --- | --- | --- | --- |
| | | | |

۳- کله چې تاسو، نهه زره درې وایاست په یوه جدول کې وښیاست چې د ۹ رقم په کومه طبقه او مرتبه کې او همدارنګه د ۳ رقم په کومه طبقه او مرتبه کې ځای لري او هغه مرتبې چې نه لوستل کیږي کومې دي او په هغو کې کوم رقم قرار لري؟

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
| --- | --- | --- | --- |
| | | | |

۴- د پنځه زرو او وه عدد ولیکئ. په جدول کې یې وښیاست او رقمونه یې په اړوندو مرتبو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
| --- | --- | --- | --- |
| | | | |




(۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹) شمېره پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکي. د کتاب له هدایت سره سم دې تش ځایونه ډک کړي که چیرې له ستونزو سره مخامخ کیږي تاسو ورسره مرسته وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د طبقو یو جدول په تخته باندې وکاږي چې په هغه کې د لس زرو مرتبه هم شتوالی ولري. او زده کوونکي دې هم له هغه سره سم یو جدول په خپلو کتابچو کې رسم کړي. او لاندې عددونه دې د هغه په اړوندو مرتبو کې ولیکي.

۱۹۰۰۰، ۱۰۰۰۰، ۹۹۹۹، ۹۹۹، ۱۰۰، ۹۹

**۳– آرزونه:**

ښوونکی د خپلې ډاډینې له پاره چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ د دوی د پوهې، مهارت،

ذهنیت او د لوست د ارزښت په برخه کې داسې پوښتنې وکړي:

**پوهه:**

– څوک وایې چې د **۳٦۷۵** عدد له څو زرو، څو سلو، څو لسو او څو یو څخه جوړ شوی دی؟

– څوک وایې چې ۸ زره، **۵** سوه، **۴** لسه او یو صفر څو کیږي؟

– څوک وایې چې د لاندې جدول په مرتبو کې د **۲۸۷٦** د عدد کوم رقم په کومه مرتبه کې راځي؟ هر رقم دې په اړوند تش ځای کې ولیکي.

| یویز | لسیز | سیلیز | زریز | لس زریز |
|---|---|---|---|---|
| | | | | |

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي:

الف: ? = ۲ یو، ۳ لسه، ۴ سوه او ٦ زره.

ب: د نهه زر اووه سوه درویشت عدد په رقم سره ولیکئ؟

ج: د **۳۱٦۵** عدد ولولی او په تورو یې ولیکی؟

د: د **۳۷۵۹** عدد له څو زرو، څو سلو، څو لسو او څو یو څخه جوړ شوی دی؟

هـــ: زده کوونکي له زرو څخه تر **۱۰۰۰۰** پورې ټول عددونه لوستلی او لیکلی شي، او په جدول کې یې ښوولی شي؟

**ذهنیت:**

زده کوونکي له **۱** څخه تر **۱۰۰۰۰** پورې د عددونو له لوستلو، لیکلو د اړوند طبقو په مرتبو کې د هغو له ځای په ځای کولو څخه خوند اخلي. د نورو عددونو له زده کولو سره علاقه مند کیږي او په ذهنیت کې بدلون را منځ ته کیږي.

۵- اته زره نه سوه نه ویشت په رقم سره ولیکئ او رقمونه یې په لاندې جدول کې په اړوندو مرتبو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| ۹ | ۲ | ۹ | ۸ |

٦- څلور زر او یو سلو شپږ په رقم سره ولیکئ او رقمونه یې په لاندې جدول کې په اړوندو مرتبو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| ٦ | ۰ | ۱ | ۴ |

۷- اته زره اووه سوو شپږ نوي په رقم سره ولیکئ او رقمونه یې د جدول په اړوندو مرتبو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| ٦ | ۹ | ۷ | ۸ |

۸- نه زره نوي د جدول په اړوندو مرتبو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| ۰ | ۹ | ۰ | ۹ |

۹- نه زره نه سوه نه نوي د جدول په اړوندو مرتبو کې ولیکئ او هم د ۸، او ۹ ګڼو پوښتنو د مرتبو په منځ کې توپیر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز |
|---|---|---|---|
| ۹ | ۹ | ۹ | ۹ |

کورنۍ دنده

څرنګه چې د ۹۹ په عدد باندې د (۱) عدد ورزیات شو د ۱۰۰ عدد په لاس راغلی که چیرې د ۹۹۹ په عدد باندې د (۱) عدد زیات شي کوم عدد لاس ته راځي څو رقمي دی؟ ځواب: د ۱۰۰۰ عدد لاس ته راځی چې څلور رقمې ده.

۱۴

**ارزښت:**

د عددونو لیکل، لوستل او د شیانو شمیرل د هغو په ورځني ژوند کې زیات او فوق العاده رول لري نو په دقیق او صحیح توګه د لوستلو، لیکلو او شمیرلو په پوهیدو سره د ژوند په ورځنیو معاملو کې د اشتباه ګانو څخه مخنیوی کیږي او له نورو سره مرسته کولی شي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د **۱۴** مخ کورنۍ دنده سرته ورسوي او سبا ته دې له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د عددونو لوستل او لیکل له (۱۰۰۰۰) څخه تر(۱۰۰۰۰۰) پورې

**څلورم لوست، (۱۵ – ۱۶) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړی شي تر ۱۰۰۰۰۰ پورې عددونه ولولي او ویې لیکي.

**اصطلاح ګانې:** ارقام، عددونه، کارتونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** چوټ، د طبقو چارتونه، د کتاب رسم شوي جدولونه، د عددونو کارتونه.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په دقت سره وګوري. کومې اشتباه ګانې چې د زده کوونکو له خوا شوي دي. پر تخته دې ولیکل شي. بیا دې په خپله د زده کوونکو په واسطه په صحیح توګه حل شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه پیدا او تشریح کړي. بیا دې په یوازې توګه له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وشي. په پوښتنو کې دې د وار مراعات په نظر کې ونیول شي.

– کریم دې ووایې: د ۷٦۴۵ د عدد رقمونه د طبقو په کومو مرتبو کې راځي.

– عبدالله دې ووایې: که چیرې د ۹۹۹ په عدد باندې (۱) ورزیات کړو کوم عدد په لاس راځي؟

– محمود دې ووایې: که چیرې د څلورمې مرتبې په ځای چې د عبدالله په واسطه په لاس راغلل د ٦، ۷ او ۸ رقمونه راشي، کوم عددونه چې په لاس راځي هغه ولیکئ.

– ښاغلی ښوونکی د دې له پاره چې اوسنی لوست د تیر لوست سره اړیکې پیدا کړي زده کوونکي دې د (۹۹۹۹) په عدد باندې (۱) ور زیات کړي او ودې ګوری چې څو رقمي عدد په لاس راځي. که چیرې زده کوونکو د پوښتنې په حل کې ستونزې درلودلې ښاغلی ښوونکی دې ورسره

## څلورم لوست

**د عددونو پیژندنه له ۱۰۰۰۰ څخه تر ۱۰۰۰۰۰ پورې**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي تر ۱۰۰۰۰۰ پورې عددونه ولولي او د طبقو په اړوند مرتبو کې دې ولیکي.

تا سو د ۹۹۹۹ عدد پیژندلی دی که چېرې اوس په دې عدد باندې د (۱) عدد زیات کړو د ۱۰۰۰۰ په لاس راځي چې دا عدد یو پنځه رقمي عدد دی او د (۱) عدد رقم د دویمې طبقې د لس زریزو(۱۰۰۰۰) په مرتبه کې قرار لري. که چیرې اوس د لس زریزو په مرتبه کې د (۱) د عدد په ځای د ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹ عددونه ولیکو د ۲۰۰۰۰، ۳۰۰۰۰، ۴۰۰۰۰، ۰۰۰۰، ۹۰۰۰۰ عددونه په لاس راځي. او س که چیرې د ۹۰۰۰۰ د لومړی طبقې د یویزو په مرتبه کې د۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹ عددونه ولیکو د ۹۰۰۰۱، ۹۰۰۰۲، ۹۰۰۰۳، ۰۰۰۰، ۹۰۰۰۹ عددونه په لاس راځي. همدارنګه که چیرې د ۹۰۰۰۹ عدد د لسیزو، سلیزو او زریزو په مرتبو کې د ۱، ۲، ۳، ۰۰۰۰۰، ۹ رقمونه ولیکو د ۹۰۷٦۸، ۹٦۰۲۵، ۹۷۵۴۲، .....۹۹۹۹۹ عدد په لاس راځي که چیرې د ۹۹۹۹۹ په عدد باندې د (۱) عدد ورزیات شي د ۱۰۰۰۰۰ عدد په لاس راځي تاسو کولای شئ ځنې عددونه د لاندې جدول په اړوند طبقو او مرتبو کې وګورئ.

| لومړی طبقه (دیویزو طبقه) | | | دوهمه طبقه (د زریزو طبقه) | | |
|---|---|---|---|---|---|
| د یویزو مرتبه | د لسیزو مرتبه | د سلیزو مرتبه | د زریزو مرتبه | د لس زریزو مرتبه | د سل زریزو مرتبه |
| ۹ | ۹ | | | | |
| ۰ | ۰ | ۱ | | | |
| ۹ | ۹ | ۹ | | | |
| ۰ | ۰ | ۰ | ۱ | | |
| ۹ | ۹ | ۹ | ۹ | | |
| ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۱ | |
| ۹ | ۹ | ۹ | ۹ | ۹ | |
| ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۰ | ۱ |

کورنۍ دنده

هر یو زده کوونکی دې د طبقو یو جدول رسم کړي د۱۲۰۵، ٦۰۰۰۳، ۱۲۸۰۱ عددونه دې د اړوندو طبقو په مرتبو کې وښیي.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز |
|---|---|---|---|---|
| ۵ | ۰ | ۲ | ۱ | |
| ۳ | ۰ | ۰ | ۰ | ٦ |
| ۱ | ۰ | ۸ | ۲ | ۱ |

۱۵

مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو باندې وویشي داسې عدد دې ولیکي او ودې لولي. چې یویز یې ۴، لسیز یې (۰)، سلیز یې (۰)، زریز یې (۸) او لس زریز یې (۲) وي. که چیرې زده کوونکي ونشي کولی ښاغلی ښوونکی دې هغه په دړه باندې حل کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې داسې عددونه ولیکي او ودې لولي چې یوازې د لس زریزو په مرتبو کې یې ٦، ۷ او ۹ وي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱٦) مخ ته را وګرزوي، لومړی او دریم ګروپونه دې د کتاب لومړی پوښتنه او دویم ګروپ دې د (۱٦) مخ د مشق او تمرین دریمه پوښتنه د کتاب له هدایت سره سم تش ځایونه ډک کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه، یو یو تن خپل کړئ

کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي.

### ۳- آرزونه:

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

- څوک د (۹۸۷٦۴) عدد لوستلی او په تورو یې لیکلی شي؟
- څوک د (۸۵۴۰۲) عدد د یوه جدول په اړوند مرتبو کې لیکلی او لوستلی شي؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د ۲۸٦۹۲، ۸۹٦۷۸ او ۹۰۰۰٦ عددونه په تورو سره ولیکي.
- زده کوونکي وکړای شي د ۲۹۰۰۰، ٦۵۹۷۸ او ۹۰۰۱۸ عددونه د طبقو د جدول په اړوند مرتبو کې ولیکي.

**ذهنیت:**

د زده کوونکو ذهن د لوستلو، لیکلو او د شیانو د شمیرلو په پوهیدو سره بدلون مومي خوښی ښکاره کوي او خوند ورڅخه اخلي.

**ارزښت:**

زده کوونکی کولی شي چې په ورځني ژوند کې د شیانو په پلورلو، رانیولو او شمیرلو کې په ښه توګه کار وکړي وېې لولي وېې لیکی او په حساب کولو کې ګټه ورڅخه واخلي په دې توګه خپلې او د نورو ستونزې حل کړي.

مشق او تمرین

د لاندې عددونو تش ځایونه په مناسب رقمونو سره د حل شوی مثال په ډول په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

مثال:

۱) شپږ او یا زره دوه سوه
۲) شل زره
۳) اوه لس زره شپږ سوه پنځه څلویښت
۴) دوه دیرش زره
۵) اته ویشت زره پنځه دیرش

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٧ | ٢ | ٢ | ٠ | ٠ |
| ٢ | ٠ | ٠ | ٠ | ٠ |
| ١ | ٧ | ٢ | ۴ | ۵ |
| ٣ | ٢ | ٠ | ٠ | ٠ |
| ٢ | ٨ | ٠ | ٣ | ۵ |

لاندې عددونه لکه حل شوی مثال په حروفو باندې ولیکئ.

مثال: ۳۸۹۳۰ – اته دیرش زره نهه سوه دیرش

۱_ ٦۵۰۰۴ پنځه شپیته زره څلور.
۲_ ۷۳٦۴۲ دری اویا زره شپږ سوه دوه څلویښت.
۳_ ۱۰۰۰۰۰ سل زره.
۴_ ۸۷۰۰۷ اووه اتیا زر اووه.
۵_ ۹۹۹۹۹ نه نوی زره نه سوه نه نوي.

زده کوونکی دې یو طبقاتي جدول په خپلو کتابچو کې رسم کړي بیا دې لاندې عددونه د جدول په اړوندو مرتبو کې ولیکي او هم دې په حروفو ولیکی.

۳۴۰۰۳، ۱۰۰۰۰۰، ۹۵۹۹۹

څلور دیرش زره دری سل زره پنځه نوی زره نه سوه نه نوي

۱۲

### ۴- کورنۍ دنده:

زده کوونکی دې د کتاب د هدایت سره سم د ۱۵ او ۱٦ مخونو پوښتنې حل او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د عددونو پېژندنه له (۱۰۰۰۰) څخه تر (۱۰۰۰۰۰) پورې

**څلورم لوست، (۱۷) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی وکړای شي تر (۱۰۰۰۰۰) پورې عددونه وپېژني ویې لولي او ویې لیکي.

**اصطلاح ګانې:** د عددونو کارت، ارقام.

**د لوست مرستندوی مواد:** د طبقو چارتونه، د طبقو جدول د سلو، زرو تر مرتبې پورې په کاغذ باندې.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په دقت سره وګوري او د هغو اشتباه ګانې دې په ډېره باندې ولیکی. هغه اشتباه ګانې چې د کورنۍ دندې په پوښتنو کې لري. د زده کوونکو په واسطه دې حل شي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه پیدا او تشریح کړي یا دې مرسته او لارښوونه وشي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په ګروپونو باندې وویشی د ۱۷ مخ پوښتني دی په دې ترتیب ورکړي چې (۱، ۲) شمېره پوښتنې لومړي ګروپ ته، (۳، ۴) شمېره پوښتنې دویم ګروپ ته او (۵، ٦) شمېره پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په ګروپونو کې حل کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن خپله حل کړې پوښتنې د نورو ګروپونو غړو ته تشریح او د ګروپونو د غړو پوښتنو ته دې ځوابونه ووايي که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي. ښاغلی ښوونکی دې مرسته ورسره وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! هر یو زده کوونکي دې د (۷) ګڼې د پوښتني جدول په خپلو کتابچو کې رسم او (۷) ګڼه پوښتنه دې د هدایت سره سم حل کړي.




۱ـ څو عددونه ولیکئ چې د هغو د سلیزو په مرتبو کې ۹ او د لسیزو په مرتبو کې یې ۳ وي. ځواب: ۹۳۰، ۹۳۱، ۹۳۵، ۹۳٦

۲ـ یو عدد ولیکی چې د سلیزو په مرتبه کې ۴ او د یوزریو په مرتبه کې یې ۲ وي. ځواب: ۲۴۱۲

۳ـ یو عدد ولیکی چې د یویزو په مرتبه کې ۴ او د لس زریزو په مرتبه کې یې ۷ وي. ځواب: ۷۰۱۳٦

۴ـ یو عدد ولیکئ چې د لس زریزو په مرتبه کې ۴ او د سلیزو په مرتبه کې یې ٦ وي کوم عدد دئ؟ ځواب: ۴۰٦۰۳

۵ـ یو عدد ولیکی چې د لس زریزو په مرتبه کې ۹ وي او هم ووایاست چې دا عدد څو رقمونه لري؟ ځواب: ۹۰۰۰۰ پنځه رقمي دئ.

٦ـ که چیرې د سلو زرو په مرتبه کې د (۱) رقم وي د لومړی او دویم طبقو په نورو مرتبو کې صفر وي کوم عدد لاس ته راځي؟ ځواب: ۱۰۰۰۰۰ لاس ته راځی.

۷ـ په خپلو کتابچو کې یو طبقاتي جدول رسم او د ۶۰۷۰۴ عدد د لاندې جدول په اړوندو مرتبو کې ولیکی.

| یویز | لسیز | سلیز | زریز | لس زریز | سل زریز |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴ | ۰ | ۷ | ۰ | ٦ | |

۱۷

**۲– مشق او تمرین:**

زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د (۱۸۷٦۴) عدد په نظر کې ونیسي د یوه (۱) رقم یعنی د لس زریزو د مرتبې په ځای دې د ۲، ۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸ او ۹ رقمونه ولیکي لومړی دې د لاس ته راغلي عددونو شمیر وشمیري. او بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن خپل کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښوونکی ډاډمن شي. برسیره پر دې چې د لوست په بهیر کې د زده کوونکو د فعالیتونو آرزونه شوې ده لاندې پوښتنې دې وکړي. د دې پوښتنو په کولو سره معلومیږي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟

د ستونزو د شتوالي په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د لاندې جدول اړوند عدد لولي.

| يويز | لسيز | سليز | زريز | لس زريز | سل زريز |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ٦ | ۱ |

– څوک د ۷۰٦۰۲ عدد لوستلی او ارقام يې د جدول په اړوند مرتبو کې ښيې؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي چې د ۸۷۵۱٦، ۹۷٦۰۰، ۷۹۰۰۱ عددونو رقمونه د طبقو په اړوندو مرتبو کې وليکی او ويې لولي.

– زده کوونکی وکړای شي چې ټول يو رقمي عددونه په ترتيب وليکي او بيا يې په طبقو سره جلا کړي.

**ذهنيت:**

زده کوونکی د عددونو په ليکلو، لوستلو او شميرلو سره خوښي کوي او په ذهن کې بدلون رامنځ ته کيږي.

**ارزښت:**

لوستل، ليکل، شميرل او زده کړه په ژوند کې ځانګړی ارزښت لري. د شيانو په پلورلو او را نيولو کې له اشتباه څخه مخنوی کيږي. او له لويو عددونو څخه کار اخستلی شي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی دې له خپلو کورنيو څخه د (يوې کيلو غوښې، ۴ کيلو کچالو، ۲ کيلو پياز او يوې کيلو بورې) د بيې په برخه کې معلومات تر لاسه کړي بيا دې د ورکړل شوو شيانو بيه په مجموعی توګه پيدا او په عدد سره دې وليکي.

# سرلیک: د جمعې په عملیې کې د لس دانه ییزو ګروپونو جوړول

**پنځم لوست، (۱۸ – ۱۹) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د جمعې عملیه د لسونو د ګروپونو په جوړلو سره سرته ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** ګروپونه، لسیز، لس کسیز.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، وړې ډبرې، د لوبیا دانې، چارټ او د شکلونو فلش کارتونه.

دریم فصل

جمع

پنځم لوست: د جمعې په عملیې کې د لس دا نه ییزو ګروپونو جوړول

هدف: زده کوونکي وکړای شي د جمعې عملیه د لس دانه‌ییز د ګروپونو په جوړولو سره سرته ورسوي.

لاندې شکلونه او د هغو اړوند عملیوته پاملرنه وکړئ.

۹+۷ =۱۰+ ۶ =۱۶

۸+۶=۱۰+۴=۱۴

په ټولګي کې د زده کوونکو فعالیت

د حل شوي مثال په ډول کار وکړئ او تش ځایونه ډك کړئ.

۵ + ۷ = ۱۰ + ۲ = ۱۲

۱۸

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو کورنۍ دنده په دقت سره وګوري. اشتباه ګانې دې پرتخته ولیکي. صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا او صحیح ځوابونه دې پرتخته تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشئ. هغه محیطي مواد چې ورسره موجود دي، هر ګروپ دې په خپل میز باندې کښېږدي.

– ښاغلی ښوونکی لارښوونه وکړي چې ګروپونه دې د کتاب له شکلونو سره سم له خپلو محیطي موادو څخه کار واخلي د (+ او =) نښو په نظر کې نیولو سره دې پوښتنې حل او د موادو په واسطه دې تمثیل کړي. او تش ځایونه دې په مناسبو عددونو سره ډک کړي. بیا دې د هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي که چیرې د پوښتنو په حل کولو کې ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۹) مخ ته را وګرزوي بیا دې لومړي ګروپ ته لومړی پوښتنه، دویم ګروپ ته دویمه پوښتنه او دریم ګروپ ته دریمه پوښتنه ورکړي چې له حل شوي مثال سره سم د پوښتنو په حل کولو کې د چاپیریال له موادو څخه کار واخلي. او تش ځایونه په خپلو کتابچو کې په مناسبو عددونو سره ډک کړي او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي، د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ۸ او ۹ عددونو د لسو د ګروپ په شکل ترتیب او جمع کوي؟

– څوک د ۳٦ او ۱۸ د عددونو د جمعې حاصل د لرګوټو د بنډلونو په واسطه ښیي او په لاس یې راوړي؟

– ښاغلی ښوونکی دې پورتنۍ پوښتنې په لاندې توګه ترتیب او حل کړي.




**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د عددونو د جمعې حاصل د لسونو د ګروپونو د جوړولو په طریقه په لاس راوړي.

– زده کوونکي وکړای شي په جمع کې د یویزو له رقمونو څخه لسیز او یویز جوړ کړي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د لسونو د بنډلونو له جوړولو او د لسونو د بنډلو جمع کولو څخه خوښي ښکاره کوي او د هغو د ذهن په پراختیا کې رول لري.

**اهمیت:**

د لسونو د ګروپونو جوړول، د عددونو جمع کول او حاصل نیول یو ځانګړی ارزښت لري زده کوونکي په دې توانیږي چې د لویو عددونو د جمعې حاصل په لاس راوړي او له هغو څخه په ورځني ژوند کې کار واخلي.




۱- مثال ته په پاملرنې سره د جمعې په عملیې کې لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

۱- مثال ۱:

۱۳ = ۳ + ۱۰ = ۷ + ۶

۱۱ = ۱ + ۱۰ = ۶ + ۵ ، ۱۶ = ۶ + ۱۰ = ۹ + ۷

۱۵ = ۵ + ۱۰ = ۶ + ۹ ، ۱۵ = ۵ + ۱۰ = ۷ + ۸

۱۷ = ۷ + ۱۰ = ۹ + ۸

۲- د مثال په ډول د لس جمع یو عدد په جوړولو سره لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

۲- مثال: ۲:

۱۴ = ۴ + ۱۰ = ۶ + ۸

۱۳ = ۳ + ۱۰ = ۴ + ۹ ، ۱۵ = ۵ + ۱۰ = ۸ + ۷

۱۲ = ۲ + ۱۰ = ۹ + ۳ ، ۱۶ = ۶ + ۱۰ = ۷ + ۹

۱۳ = ۳ + ۱۰ = ۶ + ۷

۳- د جمعې په عملیه کې لاندې تش ځایونه ډک کړئ.

۱۴ = ۴ + ۱۰ = ۸ + ۶

۱۰ = ۰ + ۱۰ = ۷ + ۳

۱۰ = ۰ + ۱۰ = ۶ + ۴




څو عددونه پیدا کولای شو چې د ۴ سره جمع شي او د جمعې حاصل یې ۱۰ شي.

۱۹

**۴– کورنۍ دنده:**

د کتاب د (۱۹) مخ کورنۍ دنده دې له لارښوونې څخه وروسته زده کوونکو ته ورکړل شي چې په خپلو کتابچو کې یې حل او له ځانو سره یې راوړي.

# سرلیک: د څو رقمي عددونو جمع چې د جمعې حاصل يې له (۱۰۰۰۰۰) څخه زيات نشي

**شپږم لوست، (۲۰) مخ**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدفونه:**

- زده کوونکي وکړای شي د څو رقمي عددونو د جمعې حاصل په لاس راوړي.

- زده کوونکي پوه شي چې په هره مرتبه کې يوازې يو رقم ليکلای شو.

**اصطلاح ګاني:** څو رقمي عددونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لسيو بنډلونه، فلش کارت، او د بانک نوټونو لس ګونی او سلګوني.

شپږم لوست : د څو رقمي عددونو جمع چې د جمعې حاصل يې له ۱۰۰۰۰۰ زيات نشي

هدف: زده کوونکي وکړای شي د څو رقمي عددونو د جمعې حاصل په لاس راوړي.

- زده کوونکي پوه شي چې په هره مرتبه کې يوازې يو رقم ليکلای شو.

پاملرنه وکړئ: تاسو د حاصل لرونکو عددونو جمع په کوچنيو عددونو کې په دويم ټولګي کې ولوسته او زده مو کړل، د جمعې دا عمليه په لويو عددونو کې داسې په نظر کې ونيسئ.

مثال:

| زرييز | سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|---|
| ① | ① | ① | |
| ۲ | ۵ | ۳ | ۴ |
| + ۶ | ۷ | ۶ | ۷ |
| ۹ | ①۳ | ①۰ | ①۱ |

$$\begin{array}{r} 2534 \\ +6767 \\ \hline 9301 \end{array}$$

(۲۵۳۴ + ۶۷۶۷ = ۹۳۰۱)

د زده کوونکو فعاليت په ټولګي کې

مخامخ پوښتنې حل کړئ:

۶۴۳۵ + ۱۵۸۶ = ۸۰۲۱

۵۸۴۳ + ۶۰۸۰ = ۱۱۹۲۳

۷۳۲۱ + ۲۶۰۹ = ۹۹۳۰

کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل کړئ:

۲۷۰۳ + ۹۶۱۹ = ۱۲۳۲۲

۱۰۸۷ + ۹۹۴ = ۲۰۸۱

۳۴۰۵۶ + ۶۴۹۶۷ = ۹۹۰۲۳

۲۰

**۱- فعاليتونه:**

- ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو باندې وويشي. د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وګوري. هغه اشتباه ګانې چې د ګروپونو له خوا ويل کيږي په تخته باندې دې فهرست شي.

اشتباه ګانې دې د ګروپونو د يوه تن په واسطه صحيح شي. که چيرې له ستونزو سره مخامخ کيږي. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي. بيا دې لاندې پوښتنې وپوښتل شي.

له لومړي ګروپ څخه دې شريف وواېي د څو رقمي عددونو په جمع کولو کې لومړی د کومو مرتبو رقمونه يو له بل سره جمع کيږي.

له دويم ګروپ څخه حامد: لاندې جدول دې په نظر کې ونيسئ.

| زرييز | سليز | لسيز | يويز |
|---|---|---|---|
| | | | |

په دې جدول کې د ۱۲۰۲ او ۳۷۴ عددونو په اړوند مرتبو کې د جمعې په شکل وليکئ.

له دريم ګروپ څخه احمد: هغه عددونه چې حامد ته ورکړل شوي دې د هغو د جمعې حاصل په خپلو مرتبو کې يو د بل لاندې وليکئ.

که چيرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ شي ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي.

- ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې د ۳۲۶ او ۳۷ عددونو د جمعې حاصل، د لرګوټو، يا د تيار شوو کارتونو، او بانک نوټونو په واسطه په عملي ډول وښيي. او د نومړو عددونو د جمعې حاصل دې په لاس راوړي. بيا دې له هر ګروپ څخه يو، يو تن خپل کار ونورو ګروپونو ته تشريح کړي. که چيرې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې ورته لارښوونه وکړي.

**۲- مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی دې د (۲۰) مخ پوښتنې په ټولګي کې د

زده کوونکو په ګروپونو باندې حل کړي د یوه ګروپ کار دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. د ګروپونو اشتباه ګانې دې پر تخته ولیکل شي. د ګروپونو پام دې اشتباه ګانو ته را ګرزول شي او خپلې اشتباه ګانې دې په اړوند ګروپونو کې صحیح کړي.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکي خپل ځان ډاډمن کړی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي:

**پوهه:**

– که چیرې د جمعې په یوه عملیه کې د یویزو د مرتبې د جمعې حاصل (۱٦) شي، کوم رقم یې د یویزو په مرتبه کې لیکي او کوم رقم یې د وروستی مرتبې د جمعې له حاصل سره جمع کوي؟

– که چیرې د دوو عددونو د جمعې د اجزاوو رقمونه په اړوند مرتبو کې ونه لیکل شي. د جمعې حاصل پیدا کولی شئ؟

**مهارت:**

– زده کوونکی کولی شي چې د جمعې په عملیه کې عددونه په اړوند مرتبو کې ولیکی.

– زده کوونکي وکړای شي د هرې مرتبې اصلي رقم د هغه په اصلي مرتبې کې ولیکي. او کوم رقم چې په کومې مرتبې پورې اړه نه لري په خپل ځای کې ولیکي.

**ذهنیت:**

د څو رقمي عددونو د جمعې د عملیې په سرته رسولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د څو رقمي عددونو جمع کول له څو رقمیې عددونو سره د هغو په ژوند کې ځانګړی ارزښت لري زده کوونکي د دې عملیې په پوهیدو سره کولی شي د خپلې کورنۍ او نورو ستونزی حل کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۲۰) مخ کورنۍ دنده په خپلو کتابچو کې حل او سبا ته دې ښوونکي ته وښیې.

# سرلیک: د څو رقمي عددونو جمع چې د جمعې حاصل يې له (۱۰۰۰۰۰) څخه زيات نشي

**شپږم لوست، (۲۱) مخ**

**دويمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدفونه:**

– زده کوونکي وکړای شي د څو رقمي عددونو د جمعې حاصل په لاس راوړي.

– زده کوونکي پوه شي چې په هره مرتبه کې يوازې يو رقم ليکلای شو.

**اصطلاح ګاني:** عددونه، څو رقمي.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، بنډلونه، فلش کارتونه او د طبقو چارټونه.

پوښتنې:

۱ – د حاصل څخه په کار اخستنې سره لاندې د جمعې پوښتنې حل کړئ.

۱۴۴۳ + ۱۸۵۸ = ۳۳۰۱    ۱۰۰۴۷ + ۹۹۹۳ = ۲۰۰۴۰    ۳۴۵۶ + ۴۰۹۰۷ = ۴۴۳۶۳

۲ـ پوښتنې خپلو کتابچو ته نقل او په تش ځايونو کې مناسب عددونه وليکئ.

۰۰۰ + ۴۷۸ = ۴۷۸    ۱۷۳ + ۳۴۹ = ۵۲۲    ۸۸۶ + ۵۰۸ = ۱۳۹۴

۶۷۸ + ۳۲۳ = ۱۰۰۱    ۸۷۶ + ۲۳۳ = ۱۱۰۹    ۷۳۵۶ + ۴۳۴ = ۷۷۹۰

۳ـ احمد ۲۸ افغانۍ لري پلار يې د سودا را نيولو لپاره ۷۰۶ افغانۍ ورکړي اوس د احمد سره څو افغانۍ شته دي.

۲۸ + ۷۰۶ = ۷۳۴

۴ په يوه بڼ کې د بادام ۱۸۰۰ نيالګي او د زردآلو ۵۵۰ نيالګی شته، معلوم يې کړي چې په بڼ کې ټول څو نيالګي دي؟

۱۸۰۰ + ۵۵۰ = ۲۳۵۰

۵ـ کريم له ذبيح څخه ۱۸۰ افغانۍ زياتې لري که چيرې ذبيح ۳۸۰ افغانۍ ولري د کريم پيسې معلومې کړئ.

۳۸۰ ← د ذبيح الله پيسې
۱۸۰ +
۵۶۰ ← د کريم پيسې

۶ـ د اختر په ورځ پلار خپل کريم زوی ته ۵ افغانۍ او نورو ۴ ورونو يې هم هر يوه کريم ته ۵،۵ افغانۍ ورکړي معلوم يې کړئ چې اوس کريم څو افغانۍ لري.

ځواب: ۲۵ = ۵ + ۵ + ۵ + ۵ + ۵

کورنی دنده

د پوښتنې په ډول يوه عبارتي پوښتنه ترتيب او حل يې کړئ.

۲۱

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلي ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په دقت سره وکتل شي اشتباه ګانې دې په تخته باندې وليکل شي. صحيح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پيدا شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې په تخته باندې تشريح کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وويشئ، د چاپيريال کوم مواد چې په لاس کې لري په ميز باندې کښيږدئ، بيا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړه:

لومړی ګروپ: د ۴۷۵۲۱ او ۳۱۲۵۶ عددونو د جمعې حاصل پيدا کړئ.

دويم ګروپ: د هغو عددونو د جمعې حاصل چې لومړی ګروپ پيدا کړئ دی په مرتبو کې وښياست.

دريم ګروپ: هغه د جمعې حاصل چې لومړی ګروپ پيدا کړئ دی، د طبقو په جدول کې وښياست.

– ښاغلی ښوونکی! د (۲۱) مخونو د پوښتنو څخه دې لومړی ګروپ (۱، ۴) ګڼې پوښتنې، دويم ګروپ دې (۵، ۳) ګڼې پوښتنې او دريم ګروپ دې (۶، ۷) ګڼې پوښتنې حل کړي. بيا دې له هر ګروپ څخه، يو، يو تن خپل ګروپې کارو نورو ګروپونو ته تشريح کړي. که چيرې ګروپونو اشتباه ګانې کړي وي په تخته باندې دې وليکل شي. او صحيح ځوابونه دې په خپله د زده کوونکو په واسطه پيدا شي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه ورته وشي.

**۲ – مشق او تمرين:**

د (۲۱) مخ (۲) ګڼې پوښتنو په برخه کې دې زده کوونکو ته لارښوونه وشي د مثال له حل کولو وروسته دې زده کوونکي پوښتنې په يوازې توګه دې خپلو کتابچو ته نقل او حل دې کړي. او د پوښتنو د حل طريقه دې له خپلې ګروپ سره ګډه کړي. هغه چا چې اشتباه کړې وه د خپل

ګروپ د غړو په مرسته دې اشتباه صحیح کړي او پوښتنی دې په صحیح توګه حل کړي. که چیری بیا هم مشکل ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**۳- آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکي ځان ډاډمن کړی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي.

**پوهه:**

- څوک د ۴۰۷۰۶ او ۷۳۲۵۷ عددونه یو تر بل لاندې لیکي او د جمعې حاصل یې په لاس راوړي؟
- څوک د ٦۷۵۲۱ او ۳۴۷۵ عددونه د جدول په اړوند مرتبو کې لیکي او جمعې حاصل یې په لاس راوړي؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د څو رقمې عددونو په جمع کولو کې د عددونو رقمونه په اړوند مرتبو کې یو تر بل لاندې ولیکي او د جمعې حاصل یې پیدا کړي.
- زده کوونکي وکړای شي د جمې د اجزاؤو د عددونو رقمونه د جدول په اړوند مرتبو کې ولیکي او د جمعې حاصل په لاس راوړي.

**ذهنیت:**

کله چې زده کوونکي وتوانیږي د څو رقمې عددونو د جمعې حاصل له څو رقمې عددونو سره په لاس راوړي په ذهن کې یې بدلون راځی خوښي کوي او په ځان باور پیدا کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د څو رقمې عددونو له جمع کولو څخه په ورځني ژوند کې کار اخلي هغوی کولای شي لوی عددونه یو له بله سره جمع کړي. د خپل ځان او نورو ستونزي حل کوي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (۲۱) مخ کورنۍ دنده د هدایت او لارښوونی سره سم حل او سبا ته دې له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د هغو عددونو جمع کول چې له دوو جزو څخه زیاتي اجزاوي ولري

**اووم لوست، (۲۲، ۲۳) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د جمعي عملیه چې له دوو جزو څخه زیاتي اجزاوي ولري سرته ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** جز، زیات، عددونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** وړې ډبرې، د لوبیا داني، د لرګوټو د لسیو بنډلونه، د لرګوټو د سلګونو بنډلونه.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو وویشي. د زده کوونکو کورنۍ دندې په غور سره وګوري. د هر تن اشتباه ګاني دې د ګروپ د غړو له خوا په یوه ورق کاغذ کې ولیکل شي. د ګروپ هغه غړي چې پوښتني یې صحیح حل کړې دي. د خپل ګروپ نور غړي دې په اشتباه ګانو باندې پوه او پام دې را وګرزوي پوښتنه دې حل کړي، که چیرې له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې د ټولګی مخې ته ودریږي یو بنډل د سلګونو، ۲ بندله د لس ګونو او ۳ یو دانه یې دې زده کوونکو ته وښیې او د میز په یو ګوټ (کونج) کې دې کښیږدي زده کوونکو ته دې ووایې د هغو شمیر څو شول زده کوونکی به ووایې ۱۲۳، ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایې د ۱ عدد په خپل ګروپ کې یاددښت کړئ، بیا دې ښاغلی ښوونکی ۲ بنډله سلګوني، ۴ بنډله لس ګوني او ۶ یو دانه یې زده کوونکو ته وښیې او په میز باندې دې جلاء کښیږدي. او د هغو شمیر دې له زده کوونکو څخه وپوښتي، او عدد دې تر مخکنۍ عدد لاندې ولیکي. په پای کې دې ښاغلی ښوونکی یو بنډل سلګون او ۵ یو دانه یې زده کوونکو ته وښیې، پوښتنه دې وکړي چې څو شول، هغوی ځواب ورکوي ۱۰۵. دا عدد هم تر مخکنۍ عددونو لاندې ولیکئ، او لرګوټي دې د میز په بل ګوټ کې کښیږدي.

– ښاغلی ښوونکی دې له هر ګروپ څخه یو زده کوونکی را وغواړي ورته ودې وایې لرګوټي سره یو ځای کړئ او وشمیرئ

**اووم لوست: د هغو عددونو جمع چې له دوو جزو څخه زیات ولري**

هدف: زده کوونکي وکړای شي د جمعې عملیه چې له دوو جزو څخه زیات اجزاوي ولري سرته ورسوي.

| | | |
|---|---|---|
| ① | ① | |
| ۱ | ۴ | ۸ |
| ۳ | ۶ | ۵ |
| ۱ | ۰ | ۰ |
| ۵ | ۱ | ۳ |

| | | |
|---|---|---|
| ① | ① | |
| ۱ | ۷ | ۶ |
| ۲ | ۰ | ۰ |
| ۵ | ۳ | ۰ |
| + | ۶ | ۴ |
| ۹ | ۶ | ۰ |

| | | |
|---|---|---|
| د جمعې لومړی جزء | ۲ | ۵ |
| د جمعې دویم جزء | ۱ | ۲ |
| د جمعې دریم جزء | + ۱ | ۰ |
| د جمعې حاصل | ۴ | ۷ |

د زده کوونکو فعالیت په ټولګي کې

۱. جمع یې کړئ:

الف: ۳۴۷ + ۱۰۰ + ۱۲۳ + ۱۴۷ = ۷۱۷

ب: ۱۰۱ + ۲۳۴ + ۵۶ + ۱۲ = ۴۰۳

ج: ۳۴۷ + ۱۱۲ + ۶۲۳ = ۱۰۸۲

۲. حل یې کړئ: ټول هغه عددونه ولیکئ چې د جمعې حاصل یې ۹ شي په داسې حال کې چې اجزاوي تکرار نشي.

۹=۳+۶ ، ۹=۴+۵
۹=۸+۱ ، ۹=۲+۷

۳. حل یې کړئ: ټول هغه عددونه ولیکئ چې د جمعې حاصل یې ۱۲ وي او مساوي اجزاوي ولري.

۱۲=۲+۱۰ ، ۱۲=۱+۱۱، ۱۲=۳+۹
۱۲=۴+۸ ، ۱۲=۵+۷ ، ۱۲=۶+۶

کورنۍ دنده

جمع یې کړئ:

۷۰۰۲ + ۱۸۷۰ + ۹۴۰۲ + ۸ = ۱۸۲۸۲

۳۵ + ۷۴۳ + ۳۷۱ + ۱۰۰ = ۱۲۴۹

۲۲

چې څو یو دانه یې، څو بنډله لس ګوڼ او څو بندله سلګون شوي دي زده کوونکي د سلګونو د بنډلونو، د لس ګونو د بنډلونو او یو دانه یې له شمیرلو وروسته ښایې چې ووایې ۱۴ یو دانه یې، ۶ بنډله لس ګوني او ۴ بنډله سلګوني دي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې چې له ۱۴ یو دانه یې څخه د لس ګونو بنډل جوړ کړئ ښایې چې زده کوونکي یو بنډل د لس ګونو او ۴ یو دانه یې جوړ کړي. بیا دې زده کوونکو ته ووایې چې د لس ګونو بنډل د لس ګونو د بنډلونو تر څنګ کښیږدئ بیا یې وشمیرئ چې څو سلګوني، څو لس ګوني او څو یو دانه یې شول په ترتیب سره دې هغه په خپل میز باندې کښیږدي، ښایې چې زده کوونکي ووایې ۴ سلګوني، ۷ لس ګوني او ۴ یو دانه یې دي. اوس د هغو اړوند عدد ولیکئ.

– ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکی را وغواړي او په تخته باندې دې یو جدول رسم کړي بیا د ۱۲۳، ۲۴۶ او ۱۰۵ عددونه چې مخکې د لرګوټو د بندلونو له مخې لیکل شوي دي د جدول په اړوندو مرتبو کې دې ولیکي.




– ښاغلی ښوونکی یو بل زده کوونکی ته دي عددونه یو له بل سره جمع کړي او رقمونه دي په اړوندو مرتبو کې ولیکي که چیری له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دي مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د کتاب د (۲۲) مخ مثالونه په دقت سره وګوري د همدې مخ (۱، ۲، ۳) پوښتنې دې په ګروپونو کې په ګډه سره کار وکړي. او ښاغلی ښوونکی دي د کار د جریان مراقبت کوي، که چیری زده کوونکي ستونزوي ولري ښاغلی ښوونکی دي مرسته او لارښوونه وکړي.


پوښتنې:
۱- یوه بڼوال د ۳٦۲۰۰ افغانیو منې د ۱۲۰۰۰ افغانیو ناك او د ٦۱۰۰ افغانیو شفتالو وپلورل معلوم یې کړئ چې نوموړی بڼوال ټولې څو افغانۍ په لاس راوړي دي؟ ځواب: ۵۴۳۰۰=٦۱۰۰+۱۲۰۰۰+۳٦۲۰۰
۲- یوه هټۍ وال په لومړی ورځ د ۱۲۰۰ افغانیو په دویمه ورځ د ۱۲۰ افغانیو په دریمه ورځ د ۱۸۰۰ افغانیو او په څلورم ورځ د ۲۰۲۰۰ افغانیو اجناس پلورلي دي معلوم یې کړئ چې په څلور واړه ورځو کې یې ټولې څو افغانۍ په لاس راوړی دي؟ ځواب: ۲۳۲۲۰=۲۰۲۰۰+۱۸۰۰+۱۲۰+۱۲۰۰

**مشق او تمرین**

۳- لاندې پوښتنې خپلو کتابچو ته نقل او تش ځایونه یې په مناسبو عددونو سره ډك کړئ.

۱ ۱ ۱ ۱
۰ ۳ ٦ ۷ ۳
+ ٦ ۷ ۴ ۳ ۸
۷ ۱ ۱ ۱ ۱

۱ ۱ ۱ ۱
۳ ۹ ۰ ۵ ۵
+ ۷ ۰ ۹ ۴ ۵
۱۰ ۰ ۰ ۰ ۵

۱ ۱ ۱
۷ ۸ ۸ ۴ ۲
+ ۹ ۸ ۸ ۷
۸ ۸ ۷ ۲ ۹

۱ ۱ ۱
۱ ۰ ٦ ۷ ۸
+ ۰ ۱ ٦ ۷ ۸
۱ ۲ ۳ ۵ ٦

کورنۍ دنده

د توکر او بدلو یوې فابریکې په لومړۍ ورځ ۴۳۰ متره توکر، په دویمه ورځ ۷۴۰ متره توکر او په دریمه ورځ ۱۰۲۰ متر توکر تولید کړی دی معلوم یې کړی چې په دري واړو ورځو کې یې ټول څو متره توکر او بدلی دی.
ځواب: ۵۱۹۰=۱۰۲۰+۴۳۰+۷۴۰

۲۳

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۲۳) مخ ته را وګرزوئ، زده کوونکي دې (۱، ۲، ۳) ګڼې پوښتنې په ګروپونو کې حل کړي. او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د خپلو حل کړو پوښتنو حل د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته دې ورسره وشي.

**۳– ارزیابی:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې د هغو عددونو په جمع کې چې له دوو جزو څخه زیاتي اجزاوي ولري لومړی کومې مرتبې یو له بله سره جمع کیږي؟

– څوک وایې که چیری د یوې مرتبې د اجزاو د جمعې حاصل (۱۰) شي په هم هغه مرتبه کې کوم رقم لیکل کیږي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د هغو عددونو د جمعې حاصل چې د جمعي اجزاوي له دوو څخه زیات وي پیدا کړي.

– زده کوونکی پوه شي چې په هره مرتبه کې یوازې یو رقم لیکل کیږي که چیرې د یوې مرتبې د جمعې حاصل یو دوه رقمي عدد وي. وکړای شي د ښې خوا رقم په هم هغه مرتبه کې ولیکي او د کیڼې خوا رقم له وروستۍ مرتبې سره جمع کړي.

**ذهنیت:**

د زده کوونکو ذهن د څو عددونو د جمعې د حاصل په پیدا کولو سره بدلون مومي خوښي ښکاره کوي. روحاً تقویه کیږي او په ځان باور پیدا کوي.

**ارزښت:**

د داسې عددونو جمع کول چې زیاتې اجزاوې ولري، انسانان ورته په ورځنې ژوند کې زیات اړتیا پیدا کوي. نو زده کوونکی د دې پوهې په اخستلو سره کولای شي د خپل ځان او نورو ستونزې حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (۲۲) او (۲۳) مخونو کورنۍ دندې حل او سبا دې له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د جمعې د عملیې ازمول

**اتم لوست، (۲۴، ۲۵) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د جمعې د عملیې د سرته رسولو له صحیح والی څخه ډاډمن شي.

**اصطلاح ګانې:** سرته رسول، ازمول، ډاډمن کېدل.

**د لوست مرستندوی مواد:** د عددونو کارتونه، زده کوونکي، د لوبیا دانې، لرګوټې او نور د محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې په غور سره وکتل شي. اشتباه ګانې دې ولیکل شي هغو زده کوونکو چې د پوښتنو په حل او ازمولو کې اشتباه کړې ده. اشتباه دې په ګروپ کې حل شي. که چیرې له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي او بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي.

لومړی ګروپ: د ۲۰۵ عدد په اړوند مرتبو کې ولیکئ او جمع یې کړئ.

دویم او دریم ګروپ: د ۲۰۵ عدد د یوه جدول په اړوند مرتبو کې ولیکئ.

– ښاغلی ښوونکی دې په تخته باندې د: ۳۴ + ۲۳ عملیه ولیکي. او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي څوک کولای شي دا پوښتنه حل کړي، له لومړي ګروپ څخه احمد پوښتنه داسې حل کوي.

۳۴
+ ۲۳
۵۷

بیا دې د دویم ګروپ له سلیم څخه پوښتنه وکړي چې د ۲۳ + ۳۴ د جمعې حاصل پیدا کړه.

په دې صورت کې به سلیم ولیکي. په پای کې دې

۲۳
+ ۳۴
۵۷

ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي.

**اتم لوست: د جمعې د عملیې آزمول**

هدف: زده کوونکي وکړای شي د عملیې په صحیح والی خپل ځان ډاډمن کړي.



۳۲۲
+۱۰۷۶
۱۳۹۸ ؟



شاکر، فهیم ته وویل: کولای شې چې د ۳۲۲ عدد د ۱۰۷۶ له عدد سره جمع کړې؟

فهیم وویل هو، داسې جمع کوم:

۳۲۲
+ ۱۰۷۶
۱۳۹۸

شاکر وویل: څرنګه پوهیږې چې پوښتنه دې صحیح حل کړې ده او که غلط؟

فهیم وویل: ددې کار د پاره د جمعې د اجزاو ځایونه بدلوو او د جمعې عملیه سرته رسوو. که په دواړه صورت کې عیني عدد لاس ته راغی نو ځواب صحیح دی.

۱۰۷۶
+ ۳۲۲
۱۳۹۸

کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې لومړی په کتابچو کې جمع او بیایې وآزموئ.

۲۳۴۵ + ۱۰۲۳ = ۳۳۶۸

۱۰۸۶۰ + ۲۸۰۱۵ = ۳۸۸۷۵

۲۹۷۶۴ + ۵۰۲۳۵ = ۷۹۹۹۹

۲۴

تاسو ټوله د احمد او سلیم حل کړئ پوښتنې په ګروپونو کې تر غور لاندې ونیسئ. کوم توپیر چې په هغو کې وینئ وواياست چې څه توپیر لري.

که چیري زده کوونکي وویلای شي چې په دواړه پوښتنو کې د جمعې د اجزاؤ ځایونه بدلون موندلئ ده خو د جمعې په حاصل کې بدلون نه دئ راغلی، ښه به وي پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې د محیطي موادو په واسطه په عملي توګه زده کوونکو ته وښیي او قناعت دې حاصل کړي.

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۲۴) مخ ته را وګرزوئ چې (۲۴) مخ مطالعه کړي. دوه تنه چې یو یې د لومړي ګروپ او بل یې د دریم ګروپ څخه وي د ټولګي مخې ته ودروئ. چې په تمثیلي شکل یو یې د شاکر او بل یې د فهیم رول ولوبوي. او نورو زده کوونکی دې پام ورته ونیسي که چیری هغوی اشتباه کوي مرسته او لارښوونه دې وشي.

**۲- مشق او تمرین:**

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د (۲۵) مخ لومړۍ پوښتنه په ګرپونو کې حل او وازموي او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د خپل ګروپ کړی کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي ترڅو پوښتنې د زده کوونکو په ذهن کې ځای ونیسي. بیا دې د زده کوونکو پام د کتاب د (۲۵) مخ نورو پوښتنو ته را وګرزوي. چې د لومړۍ پوښتنې سره سم چې مخکې حل شوی ده، نورې پوښتنې حل کړي داسې چې لومړی ګروپ ته (۲) ګڼه پوښتنې، دویم ګروپ ته (۳) ګڼه پوښتنې او دریم ګروپ ته (۴) ګڼه پوښتنې ورکړل شي چې په ټولګي کې یې حل کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن، د خپلو حل کړو پوښتنو ځوابونه د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې د پوښتنو په حل کولو کې له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې که چیرې د جمعې د اجزاوو ځایونه یو له بله سره بدل شي د جمعې حاصل زیاتیږي او که کمیږي؟
- څوک د جمعې په عملیه کې د بدلون قانون بیانوي.

**مهارت:**

- ټول زده کوونکي باید پوه شي که چیرې د جمعې د اجزاو ځایونه یو له بله سره بدل شي د جمعې په حاصل کې هیڅ ډول بدلون نه راځي.
- زده کوونکي کولی شي د موادو په واسطه ثبوت کړي که چیرې د جمعې د اجزاوو ځایونه بدلون مومي د جمعې په حاصل کې بدلون نه راځي.

مشق او تمرین

۱. لاندې عددونه لومړی جمع او بیا یې وآزموئ؟

| | | |
|---|---|---|
| ۱۷۸۹۱ | ۷۶۵۰ | ۳۷۶۴ |
| + ۷۱۸۶۴ | + ۶۳۴۲۵ | + ۱۵۳۲۱ |
| ۸۹۷۵۵ | ۷۱۰۷۵ | ۱۹۰۸۹ |

۲. د ۷۲۰۵ او ۶۰۱۰ عددونه یو له بله سره جمع او و آزموئ؟

ځواب: ۱۳۲۱۵=۶۰۱۰+۷۲۰۵ زده کونکي دې وازموی

۳. د ۹۹۹۹ لـه عـدد څخـه دوه مخکنـي او دوه وروسـتی عددونه یو له بله سره جمع او وآزموئ.

| | |
|---|---|
| ۱۰۰۰۰ | ۹۹۹۷ |
| + ۱۰۰۰۱ | + ۹۹۹۸ |
| ۲۰۰۰۱ | ۲۹۹۹۵ |

زده کونکي دې وازموی

۴. په یوه بڼ کې ۸۰۰۰۰ د منو نیالګی ۱۶۷۴۵ نیـالګی یـې نـور کیښـودل‌شول‌اوس په بڼ کې څو نیالګی شته، په دوه ډولـه یـې ځواب په لاس راوړئ.

ځواب: ۸۰۰۰۰ + ۱۶۷۴۵ = ۹۶۷۴۵

کورنی دنده

لاندې پوښتنې لومړی په خپلو کتابچو کې حل او بیایې وآزموئ.

| | |
|---|---|
| ۱۶۴۲ | ۷۰۰۴۲ |
| + ۸۶۰۷ | + ۲۰۸۰۰ |
| ۱۰۲۴۹ | ۹۰۸۴۲ |

۲۵

**ذهنیت:**

زده کوونکي د پورته مهارت په درلودلو سره خوښي کوي روحاً تقویه کیږي د نوي ذهنیت خاوندان کیږي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د جمعې په عملیه کې د بدلون له قانون څخه په ورځني ژوند کې کار اخلي د ځان او نورو ستونزی حل کوي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د ۲۴ او ۲۵ مخونو کورنۍ دندې د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د دوه رقمي، درې رقمي او څلور رقمي عددونو تفریق له یو بل څخه

**نهم لوست، (۲٦، ۲۷) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي په دوه رقمي، درې رقمي، او څلور رقمي عددونو کې د تفریق عملیه سر ته ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، درې رقمي، څلور رقمي.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لوبیا دانې، د عددونو کارتونه او نور د چاپیریال ساده مواد.

**۱- فعالیتونه:**

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي، بیا د زده کوونکو کورنۍ دنده په دقت سره وګوری هغو چې کورنۍ دنده صحیح حل کړې ده په ښو کلیمو سره دې تشویق شي او هغو چې اشتباه کړې ده په یوه خاص صمیمیت او شفقت سره دې لارښوونه ورته وشي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د ټولګي مخې ته را وغوښتل شي چې پوښتنې په تختې باندې حل کړي. تر څو معلوم شي چې په رښتیا سره زده کوونکو پوښتنې په خپله حل کړې دي او که له بل چا څخه یې کاپي کړې ده.

بیا دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

لومړی ګروپ: د ۱۳۸ له عدد څخه د ۱۱۰ عدد تفریق کړئ.

دویم ګروپ: تاسو د ۳۹۸۰ له عدد څخه د ۳۲۰۰ عدد تفریق کړئ.

دریم ګروپ: تاسو د ۳۹۸۰ له عدد څخه د ۷۸۰ عدد تفریق کړئ.

بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي که چیرې زده کوونکي د پوښتنو په حل کې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

- ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۲٦) مخ

## څلورم فصل

## د تفریق عملیه

**نهم لوست: له یو بل څخه د دوه رقمي، درې رقمي او څلور رقمي عددونو تفریق**

هدف: زده کوونکي وکړای شي چې په دوه رقمي، دري رقمي او څلور رقمي عددونو کې د تفریق عملیه سرته ورسوي.

پاملرنه وکړئ:

احمد ۹۴ افغانۍ لري په ۴۲ افغانیو یې قلم او کتابچه راونیول اوس د احمد سره څو افغانۍ پاتې دي؟

۹۴-۴۲=۵۲

یا :

| | | |
|---|---|---|
| | ۹۴ | مفروق منه |
| − | ۴۲ | مفروق |
| | ۵۲ | د تفریق حاصل |

کریم ۱۳۸ کریته مڼې لري. که چیرې د هغو څخه ۲۸ کریته مڼې خرڅې کړي څو کرېته مڼې د هغه سره پاتې دي؟

| | |
|---|---|
| | ۱۳۸ |
| − | ۲۸ |
| | ۱۱۰ |

یوه هټۍ وال ۳۹۸۰ متره ټوکر درلود که چېرې له هغو څخه یې ۷۸۰ متره ټوکر پلورلی وي څو متره ټوکر نور ورسره پاتې دی؟

| | |
|---|---|
| | ۳۹۸۰ |
| − | ۷۸۰ |
| | ۳۲۰۰ |




هر یو زده کوونکی دې یوه عبارتي پوښتنه ترتیب او حل کړي؟




ته را وګرزوي او د کتاب (۲٦) مخ دې خلاص کړي. عبارتي پوښتنې دې ولولي او د هغو حل ته دې په ځیر سره وګوري. که چیرې ستونزې یې درلودلې ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي.

**۲- مشق او تمرین:**

زده کوونکي دې د (۲۷) مخ (۱، ۲ او ۳) ګڼې پوښتنې په ګروپي ډول حل کړي بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن تختې ته راشي. له پوښتنو څخه دې یوه، یوه پوښتنه حل کړي که چیرې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته ورسره وکړي.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړئ دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي:

**پوهه:**

– څوک د ۶۳۷۰۸ له عدد څخه د ۳۸۰۰۷ عدد تفریق کوي؟

– څوک د ۸۹۶۲۵ له عدد څخه ۲۸۳۱۴ عدد تفریق کوي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي له لوی عدد څخه کوچنی عدد تفریق کړي.

– زده کوونکي وکړای شي لوی عدد تر ملیارد او کوچنی عدد تر ملیارد پورې ولیکي او تفریق یې کړي.

– زده کوونکي پوه شي چې له کوچنی عدد څخه لوی عدد تفریق کیدای نشي او هغه په عملي توګه وښيي.

**ذهنیت:**

کله چې زده کوونکي تر ملیارد پورې عددونه یو له بله تفریق کړي هغوی خوښي کوي او د دې عملیې له سرته رسولو څخه خوند اخلي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د خپل ژوند په چارو کې د تفریق د پورتنی پوښتنو سره مخامخ کیږي کله چې د داسې پوښتنو په حل کولو وتوانیږي کولای شي د خپل ځان او نورو ستونزې حل کړي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب له هدایت سره سم د کتاب د (۲۶ او ۲۷) مخونو پوښتنې حل او سبا ته دې ښاغلی ښوونکی ته وښيي.

مشق او تمرین

۱- داووه اویا زره له عدد څخه داووه زره عدد تفریق کړئ.

۷۷۰۰۰
_۷۰۰۰
۷۰۰۰۰

۲- لاندې پوښتنې حل کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۹۹۹۹ | ۶۸۹۲۷ | ۶۷۴۲ |
| _ ۶۹۹۹ | _ ۵۶۷۰۶ | _ ۱۰۳۰ |
| ۱۳۰۰۰ | ۱۲۲۲۱ | ۵۷۱۲ |

۳- په لاندې پوښتنو باندې د تفریق عملیې په خپلو کتابچو کې سرته ورسوئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۹۹۵۲ | ۱۹۹۵۲ | ۱۷۷۶۵ |
| _ ۲۶۴۲ | _ ۱۷۳۱۰ | _ ۲۶۴۲ |
| ۱۷۳۱۰ | ۲۶۴۲ | ۱۵۱۲۳ |

کورنی دنده

لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې تفریق کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۱۸۹۷۹ | ۱۸۹۷۹ | ۱۷۹۷۸ |
| _ ۱۷۱۳۲ | _ ۱۸۴۷ | _ ۱۸۴۷ |
| ۱۸۴۷ | ۱۷۱۳۲ | ۱۶۱۳۱ |

۲۷

# سرلیک: د تفریق د عملیې سرته رسول د پورکولو د اړتیا په صورت کې

**لسم لوست، (۲۸، ۲۹) مخونه**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** که چیرې د مفروق منه د کومې مرتبې رقم د مفروق د هم هغې مرتبې څخه کوچنۍ وي زده کوونکي وکړی شي له وروستی رقم څخه په پور اخستلو سره د تفریق عملیه سر ته ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** برخه، تفریق، پور اخیستل، مفروق منه، مفروق.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټې، یو دانه یې، د لسونو بنډلونه، کارت، بانک نوټونه، او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکې دې په درې ګروپونو باندې وویشل شي د هر زده کوونکې کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي هغو زده کوونکو چې د پوښتنو په حل کولو کې اشتباه کړې ده اشتباه دې په اړوند ګروپ کې صحیح شي که چیرې بیا هم کومه ستونزه ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د ۵۲ له عدد څخه د ۳۷ عدد له محیطي مواد و څخه په کار اخستنې سره تفریق کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت کوي. هغه زده کوونکي چې ګروپې کارونو ته لږ پام او نظر کوي هغوی دې د ټولګی مخې ته را وغواړي چې د خپل ګروپ کار په عملي توګه تشریح کړي. که چیرې خپل ګروپې کار تشریح کړای نشی د هغوی پام دې خپل کار ته وګرزوي او له یوه بل زده کوونکي څخه دې وغواړي چې پوښتنه د موادو په واسطه نورو زده کوونکو ته حل او تشریح کړي. د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی

**لسم لوست: د تفریق د عملیې سرته رسول د پور اخېستلو په صورت کې**

هدف: که چیرې د مفروق منه د کومې مرتبې رقم د مفروق د هم هغې مرتبې څخه کوچنۍ وي زده کوونکي د وروستي رقم څخه په پور اخیستلو سره د تفریق عملیه سرته ورسولای شي.

څرنګه چې د عددونو په جمع کولو کې مو یو لسی د یویزو له مرتبې څخه ولسیزو ته او یو سلی د لسیزو له مرتبې څخه د سلیزو مرتبې ته انتقال کړل، د عددونو په تفریق کې کولای شئ د لسیزو له مرتبې څخه یولسی د یویزو مرتبې ته او یا د سلیزو له مرتبې څخه لسیزو ته او یا د زریزو له مرتبې څخه د سلیزو مرتبې ته انتقال کړئ او د تفریق د عملیې په حل کې له هغه څخه کار واخلئ.

(۲) (۱۴) (۱۲)
۳۵۲
– ۱۷۵
۱۷۷

**ډله ییز فعالیت:**

لاندې پوښتنې حل کړئ.

۳۰۰۰۶
– ۱۱۲۴۸
۱۸۷۵۸

۷۳۵۸
– ۶۳۵۹
۹۹۹

کورنی دنده

۷۰۱۶
– ۴۳۴۷
۲۶۶۹

۸۴۵۶
– ۵۶۸۹
۲۷۶۷

۲۸

ښوونکی مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې د خپل کتاب (۲۸) مخ خلاص کړي او په ډېر دقت سره دې د (۱) مثال حل ته وګوري او د همدې مخ نورې پوښتنې دې د حل شوي مثال په ډول حل کړي که چیرې له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲ – مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۲۹) مخ ته را وګرزوي د (۱) پوښتنې د ښي خوا د ستون پوښتنې دې لومړی ګروپ او د کیڼې خوا د ستون د لمړۍ ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ او د (۲) ګڼې د ښي خوا پوښتنې دې دریم ګروپ حل کړي.

او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د خپل ګروپ حل کړې پوښتنې د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي.

ښاغلی ښوونکی دې د ګروپي کار مراقبت کوي. که

چيري کوم ګروپ د پوښتنو په حل کولو کې ستونزي ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

### ۳- آرزونه:

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکئ متيقن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وواېي چې د تفريق په يوه عمليه کې مفروق منه زيات دی او که مفروق؟

– څوک وواېي چې د تفريق په يوه عمليه کې مفروق منه لږ ده او که د تفريق حاصل؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې د پور اخستلو په صورت کې حل کړي. په ياد يې ولرئ چې تل له لوی عدد څخه کړچنی عدد تفريق کړئ.

$١٧٣٢-٤٨١=?$ ، $٧٨٦-٤١=?$ ، $٣٠٠٥-١٠٩=?$

**ذهنيت:**

کله چې زده کوونکي د پلورلو او اخيستلو په وخت کې د تفريق عمليه په صحيح توګه سر ته ورسوي هغوی په خپل ځان باور پيدا کوي په ډېره خوښی سره د ځان او نورو ستونزې حل کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی په ژوند کې د تل له پاره د پلورلو او رانيولو له حسابی معاملو سره کار لري. د لويو بانک نوټونو لکه، لس ګوني، سل ګونی او زر ګوني ميده يا وړوکولو ته اړتيا پيدا کوي. مثلاً که چيری يو زده کوونکی د سلګون يو لوټ هټيوال ته ورکړي او له هغه څخه يو کيلو بوره چې ۳۱ افغانی کيږي وغواړي. نو بايد پوه شي چې له هټيوال څخه بيرته څو افغانی وغواړي په دې صورت کې لاندې عمليې ته اړتيا پيدا کيږي. ⑩⑨

$$\begin{array}{r} ١٠٠ \\ -\ ٣١ \\ \hline ٦٩ \end{array}$$

بايد له هټيوال څخه ٦٩ افغانۍ وغواړي.

د جمعې او تفريق تمرينونه:

۱- د چوکاټ په د ننه کې دوه عددونه يو له بله سره جمع کړئ

| | |
|---|---|
| ۶۰۷ او ۵۸۳ | ۸۴۰ او ۷۰۳ |
| $٦٠٧+٥٨٣=١١٩٠$ | $٨٤٠+٧٠٣=١٥٤٣$ |
| ۲۵۶۴ او ۸۴ | ۱۰۴ او ۱۱۱ |
| $٢٥٦٤+٨٤=٢٦٤٨$ | $١١١+١٠٤=٢١٥$ |
| ۳۷۲ او ۶۴۱ | ۱۰۰ او ۲۱۳ |
| $٣٧٢+٦٤١=١٠١٣$ | $١٠٠+٢١٣=٣١٣$ |

۲- د چو کاټ په د ننه کې دوه عددونه په نظر کې ونيسئ د لوی عدد څخه کوچنی عدد تفريق کړئ.

| | |
|---|---|
| ۱۰۰۰ او ۹۷۸ | ۴۸۱ او ۱۷۳۲ |
| $١٠٠٠-٩٧٨=٢٢$ | $١٧٣٢-٤٨١=١٢٥١$ |
| ۱۹۲ او ۶۴۰ | ۳۲۵ او ۷۸۶ |
| $٦٤٠-١٩٢=٤٤٨$ | $٧٨٦-٣٢٥=٤٦١$ |
| ۱۷۶ او ۸۷ | ۳۰۰۵ او ۱۰۹ |
| $١٧٦-٨٧=٨٩$ | $٣٠٠٥-١٠٩=٢٨٩٦$ |

۳- ۱۸۰ کسانو چې سرې او شنې جامې يې آغوستې دي، د ځغاستې په يوې لوبې کې يې ګډون وکړ که چيرې ۹۲ تنو يې سرې جامې آغوستې وي څو تنو يې شنې جامې آغوستې دي؟

$$\begin{array}{r} ١٨٠ \\ -\ ٩٢ \\ \hline ٨٨ \end{array}$$

کورنی دنده

په يوه لومړني ښوونځي کې ۴۸۲ زده کوونکي دي که چيرې ۱۷۴ يې نجونې وي د هلکانو شمير معلوم کړئ د ۲۹ مخ کورنی دنده پوښتنه

$$\begin{array}{r} ٤٨٢ \\ -\ ١٧٤ \\ \hline ٢٠٨ \end{array}$$

۲۹

### ۴- کورنی دنده:

زده کوونکی دې د ۲۹ مخ کورنی دنده حل او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د تفریق د عملیې سرته رسول د پورکولو د اړتیا په صورت کې

**لسم لوست، (۳۰ – ۳۱) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** که چیری د مفروق منه د کومي مرتبې رقم د مفروق د هم هغې مرتبې څخه کوچنی وي زده کوونکی وکړای شي د وروستی رقم څخه په پور اخستلو سره د تفریق عملیه سر ته ورسوي.

**اصطلاح ګاني:** تفریق، پور اخستل، مفروق منه، مفروق او د تفریق حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** یو دانه یې لرګوټې، د لسونو بنډلونه، د سلګونو بنډلونه، کارتونه، بانک نوټونه او نور د محیطی ساده مواد.

۵- په یوه الوتکه کې ۳۵۰ تنه مسافر دي ۲۳۰ تنه یې په یوه هوائي ډګر کې کوز شول او ۱۲۰ تنه نور نوموړي الوتکي ته وختل. اوس د مسافرینو شمیر څو تنه دی؟

۳۵۰ − ۲۳۰ = ۱۲۰، ۱۲۰ + ۱۲۰ = ۲۴۰

---

٦- په یوه کارتن کې ۱۰۰ دانه ئیز دوه قطیه قلمونه وو، که چیري ٦٨ دانې قلمونه زده کوونکو ته ویشل شوي وي نور څو دانې قلمونه پاتې دي؟

۱۰۰ − ٦٨ = ۳۲

---

۷- که چیري د دریم (الف) د ټولګی په حاضرۍ کې ۳۷ زده کوونکي او د دریم (ب) په ټولګی کې ۴۳ زده کوونکي شامل وي، په داسې حال کې چې په دواړو ټولګیو کې ۱۰ تنه غیر حاضر دي، نو په دواړو ټولګیو کې د حاضرو زده کوونکو شمیر معلوم کړئ؟

۳۷ + ۴۳ = ۸۰، ۸۰ − ۱۰ = ۷۰

---

۸- د چرګانو په دوو فارمونو کې ٦۰۰ چرګان شته دي که چیری د هغه په یوه فارم کې ۲۷۹ چرګان وي د بل فارم د چرګانو شمیر معلوم کړئ.

٦۰۰ − ۲۷۹ = ۳۲۱

---

۹- که چیري د چرګانو په یوه فارم کې ۲۰۵ چرګی یې او په بل کې ۳۱۱ چرګې وي په دواړو فارمونو کې د جوړو چرګو شمیر معلوم کړئ په داسې حال کې چې د هغو د ناروغو چرګو شمیر ۲۱ وي؟

۲۰۵ + ۳۱۱ = ۵۱٦، ۵۱٦ − ۲۱ = ۴۹۵

کورنی دنده

د تفریق یوه عبارتي پوښتنه ولیکئ او حل یې کړئ؟

۳۰

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په دري ګروپونو باندی وویشل شي. د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې په دقت سره وکتل شي. اشتباه ګاني په تخته باندې ولیکی بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن اشتباه ګانې په تخته باندې په صحیح توګه تشریح کړي چې زده کوونکي خپلو اشتباه ګانو ته متوجه شي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په تخته باندې تشریح کړي. او مرسته دې وکړي.

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۳۰) مخ ته را وګرزوي لومړی ګروپ دې (۳ او ۴) ګڼې پوښتنې، دویم ګروپ دې (۵ او ٦) ګڼې پوښتنې او دریم ګروپ دې (۷ او ۸) ګڼې پوښتنې په ګروپي ډول په ټولګی کې حل کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ حل کړی پوښتنې د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. ښاغلی ښوونکی د هر ګروپ د کار له جریان څخه کتنه کوي که چیری زده کوونکي له کوم مشکل سره مخامخ کیږی مرسته او لارښوونه وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! ټول زده کوونکي دې د کتاب د (۳۰) مخ (۹) پوښتنه د دوو دقیقو لپاره په جلا، جلاء توګه مطالعه کړي. بیا پوښتنه وکړئ، څوک کولی شي (۹) پوښـــتنه په دړې باندې حل کړي وګورئ چې داوطلب زده کوونکی څو تنه دي؟ له هغو څخه دې یو تن پوښتنه په دړه باندې حل کړي. که چیری زده کوونکي د پوښتنې په حل او تشریح کولو کې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۳۱) مخ ته راو ګرزوئ بیا دې لومړی ګروپ (۱۱) ګڼه پوښتنه، دویم ګروپ (۱۲) ګڼه پوښتنه او دریم ګروپ دې (۱۳) ګڼه پوښتنه له لارښوونې وروسته حل کړي. او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د ټولګې مخې ته راشي. د خپل

ګروپ پوښتنه دې نورو ته ولولي او حل دې کړي که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي.

او له هغه وروسته دې زده کوونکي په جلا، جلا توګه د (۳۱) مخ، (۱۰) ګڼه پوښتنه حل کړي او ښاغلی ښوونکی دې له کار څخه لیدنه کوي که چیرې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

او په پای کې دې یو زده کوونکی پوښتنه په تخته باندې حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي تاسو ټول د جمعې اجزاوو، د جمعې حاصل، مفروق منه، مفروق او د تفریق حاصل ته متوجه اوسئ چې د هــغو په منځ کې کومه رابطه شته او که نه؟ که چیرې زده کوونکي د هغو په منځ کې کومه رابطه پیدا کړای شي هغه دې وښیي.

**۳– آرزونه:**

د دې لــپاره چې ښــاغلی ښوونــکی ډاډمن شــي چې زده کــوونکو نوی لوست زده کــړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– د یوه پسه بیه ٦٥٤٨ افغانۍ ده احمد د پسه خاوند ته د افغانیو ۷ زرګوني ورکړل. څوک وایي چې احمد د پسه سره نوري څو افغانۍ د پسه له خاوند څخه بیرته واخلي؟ ځواب ۴۵۲ افغانۍ دي.

– کبیر له خپل ورور څخه ۱۲٦۷۰ افغانۍ د یوې میاشتې لپاره واخیستلې. له یوې اونۍ وروسته یې ۹۷۸٦ افغانۍ خپل ورور ته ورکړلې. څوک وایي چې کبیر نوري څو افغانۍ خپل ورور ته ورکړي. ځواب کبیر دې ۲۸۸۴ افغانۍ خپل ورور ته ورکړي.

**مهارت:**

– زده کوونکي د هغو عبارتي پوښتنو له پاره چې مخکې یې حل کړې دي د ریاضي افاده ترتیب او حل کړای شي.

– زده کونکی وکړای شي په عبارتي پوښتنو کې د جمعې اجزاوې، مفروق منه، مفروق تشخیص کړي او د تفریق حاصل په لاس راوړي.

**ذهنیت:**

د دې لوست په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په ځان باور پیدا کوي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د تفریق د حاصل پیدا کول د زده کوونکو په ورځنې ژوند کې زیات ارزښت لري. زده کوونکي کولی شي په پلورلو او را نیولو کې د خپل ځان او نورو ستونزې حل کړي او د تفریق د عملیې له ازمولو څخه کار واخلي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۳۰ او ۳۱) مخونو کورنۍ دندې چې د هغو لپاره ټاکل شوي دي حل او له ځانو سره دې راوړي.

۱۰-لاندې پوښتنه حل کړئ!
لومړی جمع کړی بیا د لاسته راغلی د جمعې له حاصل څخه هر یو جز تفریق کړئ.

| |
|---:|
| ۱۴۲۱ |
| + ۲۱۸ |
| ۱٦۳۹ |

۱۱- احمد یو خوراك، محمود دوه خوراکه او سلیم درې خوراکه کباب وخوړل او د هوټل خاوند ته یې ۵۰۰ افغانۍ ورکړلې که چیرې د یو خوراك کباب قیمت ۵۰ افغانۍ وې معلوم کړئ چې هوټلي بیر ته څو افغانۍ باید ورکړي؟

۱۲- کریم ۹۸۰ افغانۍ درلودې خپلو دریو زامنو هر یو ته یې ۹۹ افغانۍ د ښوونځي د اړتیا شیانو لپاره ورکړې، معلوم کړئ چې د کریم سره څو افغانۍ پاتې دي؟

۹۹ + ۹۹ + ۹۹ = ۲۹۷

۹۸۰ − ۲۹۷ = ٦۸۳

۱۳- د ؟ = ٦۴ - ۱۲۵ د تفریق عملیه په نظر کې ونیسئ هغه حل کړئ! بیا داسې عبارت ورته ولیکئ چې د عملیې مفهوم وښیي.

کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې دې زده کوونکي په خپلو کتابچو کې ولیکي او حل دې کړي.

۱- ۱۰۹ + ٦۱۳ + ۷۸ = ۷۹۹

۲- ۴۰۳۹ + ۷۰۴۷ + ۲۰ = ۱۱۱۰٦

۳- ۸۱۱۰ − ٦۱۸ = ۷۴۹۲

۳۱

# سرليک: د تفريق د عمليې سرته رسول د پورکولو د اړتيا په صورت کې

**لسم لوست، (۳۲) مخ**
**دريمه برخه**
**وخت: ۴۵ دقيقې**

**هدف:** که چيرې د مفروق منه د کومې مرتبې رقم د مفروق د هم هغې له مرتبې څخه کوچنی وي زده کوونکي وکړای شي د وروستي رقم څخه د پور اخستلو په صورت کې د تفريق عمليه سر ته ورسوي.

**اصطلاحات:** پيژندل، د <، > او = نښې.

**د لوست مرستندوی مواد:** بانک نوټونه، يو دانه يې لرګوټي، د لس ګونو بنډلونه، د سلګونو بنډلونه، چارټونه، د لوی، کوچني او مساوي نښې.

**۱– فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو وويشئ، کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ په واسطه وکتل شي اشتباه ګانې په ډېره باندې وليکئ. او د ګروپ د غړو په واسطه دې صحيح شي. که چيرې له کومو ستونزو سره مخامخ کيږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! له هر ګروپ څخه دې يو، يو تن وټاکل شي چې هر يو يې عبارتي پوښتنه ولولي او عمليه يې سر ته ورسوي. ښاغلی ښوونکی دې د (۳۰) مخ کورنۍ دنده چې هر زده کوونکي له ځان سره راوړې ده د هغو د پوښتنو عبارت او حل دې يو له بله سره پرتله کړي ترڅو معلوم شي چې هغوی پوښتنې په خپله حل کړې دي او که له يو بل څخه کاپي شوي دي. بيا د هغوی پام اشتباه ګانو ته را واړ وي.

– ښاغلی ښوونکی! له زده کوونکو څخه داسې پوښتنه وکړي څوک کولئ شي د (<، > او =) نښو مفهوم ووايي چې هر يوه نښه څه مفهوم لري؟ د داوطلب زده

**۱۴-** د (۷۸۶۴۲) او (۱۹۸۷۶) عـــددونو څخه کوم يويې لوی او کوم يې کوچنی دی؟ له لوی عدد څخه کوچنی عدد تفريق کړئ!

د ۷۸۶۴۲ عدد لوی ده
− ۱۹۸۷۶
۵۸۷۶۶

**۱۵-** د <، = او > نښې په څه نامه سره ياديږي، د پوښتنو تش ځايونه په مناسب نښو سره ډك کړئ!

د لوی، کوچنی او مساوي په نامه سره ياديږي.

۲۳۴۵۱ > ۷۶۴۲
۴۳۵۲۰ < ۴۳۲۱۶+۳۰۴
۴۳۲۱۶ > ۴۳۵۲۰-۳۰۴
۷۸۴۳۰ < ۸۷۹۸۶

**۱۶-** تفريق يې کړی

۷۶۴۲۱
− ۶۷۸۴۰
۸۵۸۱

۱۸۰۴۲
− ۸۷۲۴
۹۳۱۸

کورنی دنده

۱۰۰۰۰۰
− ۹۲۴۶۸
۷۵۳۲

۱۰۰۷۶
− ۹۳۲۷
۷۴۹

۳۲

کوونکو څخه دې يو يا دوه تنه د ټولګي مخې ته را وغوښتل شي چې د (<، > او =) نښو په برخه کې په درې باندې معلومات ورکړي. که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې د نښو په برخه کې په بشپړه توګه معلومات ورکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د (۳۲) مخ، (۱۴) پوښتنه په خپل ګروپونو کې حل کړي او بيا دې له هر ګروپ څخه يو، يو تن خپل کړې کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي.

**۲– مشق او تمرين:**

زده کوونکي دې د (۳۲) مخ (۱۵) پوښتنه له هدايت او لارښوونې سره سم حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې له ګروپونو څخه د کار کولو په وخت کې کتنه کوي. که چيرې زده کوونکي اشتباه وکړي لارښوونه دې ورته وشي.

بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن، د پوښتنې د حل طریقه نورو ګروپونو ته تشریح کړي بیا هم که چیرې کوم زده کوونکی ستونزي ولري له هغه سره دې مرسته او لارښوونه وشي.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکئ ډاډمن شوی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک د (<، = او >) نښو نومونه اخلي
- څوک وایي چې مونږ د تفریق په یوه عملیه کې څه وخت پور اخستلو ته اړتیا پیدا کوو؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي لوی او کوچنی عددونه تشخیص او د هغو له مخې د تفریق عملیه سر ته ورسوي.
- زده کوونکي وکړائ شي د (<، = او >) نښې وپیژني او د اړتیا په وخت کې له هغو څخه کار واخلي.

**ذهنیت:**

د لویو او کوچنیو عددونو په پوهیدو او تشخیص کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د لویو او کوچنیو عددونو تشخیص د زده کوونکو په ورځني ژوند کې ځانګړی ارزښت لري هغوی کولی شي د اړتیا په وخت کې د (<،= او>) نښو څخه کار واخلي او په مناسب ځایونو کې یې وکاروي.

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د (۳۲) مخ کورنی دنده سر ته ورسوي او سبا ته دې له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د تفریق د عملیې آزمول (امتحان)

**یوولسم لوست، (۳۳ – ۳۴) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** یودانه یې لرګوټې، د لرګوټو د لسونو بنډلونه، د سلګونو بنډلونه او نور د محیطي مواد.

**اصطلاح ګاڼي:** آزمول (امتحان)، عملیه، تفریق.

**د لوست مرستندوی مواد:** یو دانه یې لرګوټې، د لرګوټو د لسونو بنډلونه، د سلګونو بنډلونه او نور محیطي مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د اړوندګروپ په واسطه وکتل شي. اشتباه ګاڼي دې په تخته باندې ولیکل شي. هغو چې اشتباه کړې ده د هغو پام دې خپل اشتباه ته را وګرزول شي. بیا دې صحیح ځوابونه د هغو زده کوونکو په واسطه پیدا شي چې پوښتنې یې صحیح حل کړې دي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی! ۸ تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته را وغواړئ او د ټولګي کیڼ لوري ته یې ودروئ چې ټول زده کوونکي یې ولیدلای شي او د هغو شمیر ولیکي. ښاغلی ښوونکی دې هدایت ورکړي چې له همدې ۸ تنو څخه دې ۳ تنه زده کوونکي جلا شي او د ټولګي ښي خوا ته دې ودریږي. کله چې ۳ زده کوونکي جلاء شول بیا دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې لومړی څو زده کوونکي د ټولګي د مخې کیڼ لوري ته ولاړ وو. او څــو زده کـــوونکي ورڅــخه جلا شول؟ زده کوونکي باید ووایي ۸ زده کوونکي وو، ۳ زده کوونکي ورڅخه جلا یا کم شول چې اوس د ټولګي کیڼ لوري ته ۵ زده کوونکي پاتې شول. ښاغلی ښوونکی دې بیا پوښتنه وکړي. دا عملیه پخوا د څه په نامه یاد شوې ده؟ ښایي چې زده کوونکي ووایي د تفریق د عملیې په نامه.

– ښاغلی ښوونکی دې د ریاضي افاده د یوه زده کوونکي

## یوو لسم لوست: د تفریق د عملیې آزموینه

هدف: زده کوونکی پوه شي چې د تفریق پوښتنه یې په صحیح توګه حل کړې ده او که نه؟

د دې لپاره چې پوه شو د تفریق پوښتنه مو په صحیح او سمه توګه حل کړې ده او که نه؟ هغه په لاندې توګه آزموو.

**مثال**

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۴ | ۳ | ۸ | مفروق منه |
| ۲ | ۲ | ۴ – | مفروق |
| ۲ | ۱ | ۴ | د تفریق حاصل |

**آزموینه**

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲ | ۱ | ۴ | د تفریق حاصل |
| ۲ | ۲ | ۴ + | مفروق |
| ۴ | ۳ | ۸ | مفروق منه |

د تفریق د عملیې د آزموینې لپاره: لومړی د تفریق حاصل له مفروق سره جمع کوو که چیرې مفروق منه لاس ته راشي پوښتنه صحیح ده او له هغه پرته غلط ده.

پوښتنې:

۱- د حل شوي مثال په توګه لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل او وآزموئ!

۸۴۴۷ − ۶۲۴۵ = ۲۲۰۲ آزموینه: ۲۲۰۲ + ۶۲۴۵ = ۸۴۴۷

۷۶۲۹ − ۴۵۵۲ = ۳۰۷۷ آزموینه: ۳۰۷۷ + ۴۵۵۲ = ۷۶۲۹

کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې په خپله یوه پوښتنه ولیکي او حل دې کړي بیا دې وآزمویي.

۱۰۲۴ − ۶۳۵ = ۳۸۹

۳۳

په واسطه په درې باندې ولیکي چې د تفریق حاصل داسې پیدا کړي: (۵ = ۳ – ۸)

– ښاغلی ښوونکی! له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ لومړی ۸ تنه د څه په نامه یادیږي؟ (د مفروق منه په نامه) بیا ۳ جلا شوي تنه د څه په نامه یادیږي؟ (د مفروق په نامه)، ۵ تنه چې په خپل ځای کې پاتې دي د څه په نامه یادیږي؟ (د تفریق د حاصل په نامه)

– ښاغلی ښوونکی دې بیا له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي د ټولګي کیڼې خوا ته څو تنه او ښي خواته څو تنه وینئ؟ ښایي چې زده کوونکي ووایي ښي خواته ۳ تنه، کیڼې خواته ۵ تنه لیدل کیږي بیا دې هدایت ورته ورکړي چې د ښي خوا ۳ تنه دې د ۵ تنو په څنګ کې نږدې ودریږي. او زده کوونکو ته وواياست چې هغه وشیمرئ یو تن دې د دې ډول فعالیت د ریاضي افاده په تخته باندې ولیکي او حل یې کړي هغه باید (۸ = ۳ + ۵) ولیکي.

او په پای کې زده کوونکي دې د (۵=۳–۸ او ۸=۳+۵) دواړه افادې په خپل ګروپونو کې کار وکړي او دواړه

پوښتنې یو له بله سره پرتله کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن خپل کـــار د تختې په مخ باندې نورو زده کوونکو ته تشریح کړي ترڅو دې نتیجې ته ورسیږي. که چیرې د تفریق حاصل له مفروق سره جمع شي او مساوي له مفروق منه سره شي نو پوښتنه صحیح ده. له هغه پرته اشتباه شوې ده باید پوښتنه دویم واري حل شي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته هدایت ورکړي چې د (۳۳) مخ، (۱) ګڼه پوښتنې د حل شوي مثال په ډول حل کړي او تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړئ.

## ۲– مشق او تمرین:

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۳۴) مخ ته را وګرزوئ بیا دې (۲، ۳) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ، (۴، ۵) ګڼې پوښتنې دې دویم ګروپ، (٦ او ۷) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ حل کړی له حل کولو وروسته دې یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي که چیرې ستونزی ولري مرسته او لارښوونه دې ورته وکړی شي.

## ۳– آرزونه:

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړي دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایي که چیرې د تفریق حاصل له مفروق سره جمع کړو او مفروق منه په لاس راکړي پوښتنه صحیح ده او که غلطه؟ که چیرې غلطه وي صحیح وواياست.

– څوک وایي د جمعې د عملیې د آزمولو لپاره له کومې عملیې څخه کار اخیستل کیږي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل د جمعې او تفریق د عملیو آزمولو له پاره له یو بل څخه کار واخلي.

٦٧٨٩۰
− ۵۸۹٦۲

۳۷۸٦۲
+ ۱۰۰۹٦

۲- لاندی پوښتنی په خپلو کتابچو کی حل او وآزمویئ.

الف:
۶۴۲۰ − ۱۸۴۰ = ۴۵۸۰
۴۵۸۰ + ۱۸۴۰ = ٦۴۲۰

ب:
۷۳۲۵ − ۱۹۷۶ = ۵۳۴۹
۵۳۴۹ + ۱۹۷٦ = ۷۳۲۵

ج:
۱۰۰۰۰۰ − ۹۹۹۹۹ = ۱
۹۹۹۹۹ + ۱ = ۱۰۰۰۰۰

۳- یوه ښوال ۱۰۸۰ نیالګي وپلورل، ۲۱۰ نیالګي له هغه سره پاتې شـول. معلوم یې کړئ چې نوموړي ښوال ټول څو نیالګي درلودل؟
۱۰۸۰ + ۲۱۰ = ۱۲۹۰

۴- یوه مال لرونکـی ۱۲۰۰۰ میـږې درلـودې، نومـوړي ۹۰۴ میـږې وپلورلې معلوم یې کړئ چې څو میږې ورسره پاتې دي؟
۱۲۰۰۰ − ۹۰۴ = ۱۱۰۹٦

۵- یو دکان دار په څلورو ورځو کې د ۸۷۶۰۲ افغانیو توکر پلورلی دئ که چیری پـه لومړی ورځ یـې د ۱۰۸۰۰ افغـانیو، پـه دویمـه ورځ یې د ۱۶۰۷۰ افغانیو او په دریمه ورځ یې د ۳۸۰۰۰ افغانیو تـوکر پلـورلی وي. د هغـه د څلورمی ورځې پلورنه معلومه کړئ؟
۱۰۸۰۰ + ۱٦۰۷۰ + ۳۸۰۰۰ = ٦۴۸۷۰
۸۷٦۰۲ − ٦۴۸۷۰ = ۲۲۷۳۲

٦- یو تن مامور په میاشت کې ۳۴۰۰ افغانۍ معاش اخلـي که چیری ۹۰۰ افغـانۍ داوړو، او ۲۰۰۰ افغـانۍ د کـور کرایه ورکړي. څو افغانۍ له هغه سره پاتې کیږي؟
۹۰۰ + ۲۰۰۰ = ۲۹۰۰
۳۴۰۰ − ۲۹۰۰ = ۵۰۰

۷- یوه بزګر په یو کال کې ۵۰۰ منه غنم حاصـل واخـست، ۲۰۰ منه یې د خپل خوراك لپاره وساتل، څومره غـنم وپلـوري تر څو خپل نورې اړتیاوې بشپړ کړي؟
۵۰۰ − ۲۰۰ = ۳۰۰




زده کوونکي دې د خپلی پوهې او ذوق سره سم د تفریق یـوه عبـارتي پوښـتنه ترتیب کړي، بیا دې هغه حل او وآزموي؟




۲۸۹۰۲
− ۱۷۰۰۸

۴۵٦۷۸
+ ۲۷۷۹٦

**ذهنیت:**

د دې آزمولو د طریقې په پوهیدو او تشخیص کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښې کوي.

**ارزښت:**

د جمعې او تفریق د عملیو په پوهیدو او د هغو د آزمولو د طریقې په پیژندلو سره کولای شي یو د بل په واسطه یې وازموي په ورځنۍ ژوند کې کار ورڅخه واخلي د ځان او نورو ستونزې حل کړي.

## ۴– کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (۳۳ او ۳۴) مخونو د کورنۍ دندې پوښتنې په کورونو کې حل او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د عددونو د خط پیژندنه

**دوولسم لوست، (۳۵، ۳٦) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه يي)**

**هدف:** زده کوونکي د عددونو خط وپیژني او په ترتیب سره عددونه په هغه باندې ولیکلای شي.

**اصطلاح ګاني:** خط، ترتیب، پورته، مخ.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، کاغذ، د عددونو کارت.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې وکتل شي. هغو زده کوونکو چې کورنۍ دنده یې صحیح سرته رسولې ده. هغه دې په ښو کلیمو سره تشویق شي. او هغو چې کورنۍ دنده سرته رسولې نه ده د هغوی پام دې را وګرزول شي چې خپل مسؤلیت وپیژني. او په راتلونکی کې بې پروايي ونه کړي.

بیا دې ۳ زده کوونکي چې خپله کورنۍ دنده یې صحیح سر ته رسولې ده، په وار سره هر یو خپله کورنۍ دنده په تخته باندې ولیکي او حل دې کړي. چې ټول زده کوونکي د هغو حل په نظر کې ونیسي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي د عددونو کارتونه دې په خپل میز باندې په ترتیب سره له کیڼي خوا څخه ښي خواته کښیږدي. ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو له کار څخه کتنه او لیدنه کوي که چیری زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ شي مرسته او لارښوونه دې وکړي.

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۳۵) مخ ته را وګرزوي او ورته وواياست چې د کتاب له جدول سره سم یو جدول په خپل ګروپونو کې رسم کړي د شکلونو له مخې د جدول تش ځایونه ډک کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د کتاب د رسم شوي خط سره سم په ګروپونو کې خط وکاږي د (۲) ګڼې سره دې سم د خط په ټکو (نقطو) باندې مناسب

**پنځم فصل**

**د عددونو خط**

**دوولسم لوست: د عددونو خط**

هدف: زده کوونکي د عددونو خط وپیژني او په ترتیب سره عددونه په هغه باندې ولیکلای شي.

په ټولګي کې د زده کوونکو فعالیت

۱_ د عددي کارتونو د شکلونو څخه په کار اخېستنې سره د لاندې جدول تش ځایونه ډک کړئ!



| | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ | ۱۴ | ۱۵ | ۱۶ | ۱۷ | ۱۸ | ۱۹ | ۲۰ |

۲_ د پورته ډك شوي جدول څخه په كار اخستنې سره د لاندې خط په هغو ټکو باندې چې عدد لیکل شوی نه دی په ترتیب سره په خپلو کتابچو کې د هغو اړوند عدد ولیکئ.




پاملرنه:

الف: صفر د پیل په ټکی کې قرار لري.

ب: د صفر ټکی د عددي خط د پیل (مبدأ) په نامه یادیږي.

ج: دا ډول خط د عددونو د خط په نامه یادیږي.

د: د ۵، ۶، ۷، ۱، ۴، ۲، ۳عددونه داسې ترتیب کوو.

۱،۲،۳،۴،۵،۶،۷

۳۵

عددونه ولیکي. بیا دې د (الف، ب، ج او د) د اجزاؤ لارښوونې په دقت سره مطالعه کړي. او د هغو سره دې سم خپل وروستي کارونه سر ته ورسوي.

**۲ – مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۳٦) مخ ته را وګرزوئ لومړی ګروپ دې (۱) ګڼه پوښتنه دویم ګروپ دې (۳) ګڼه پوښتنه او دریم ګروپ دې (۵) ګڼه پوښتنه مطالعه او حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو د کار کولو څخه لیدنه کوي که چیري له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه دې وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! یوه زده کوونکي ته دنده ورکړئ چې د کتاب له هدایت سره سم قدمونه ووهي او نور زده کوونکي دې د کتاب هدایت عملي کړي ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت کوي بیا دې دویم واري ټولو زده کوونکو ته دنده ورکړي چې (۴) ګڼه پوښتنه مطالعه

او حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې د هغو حل ته پام وکړي که چیرې اشتباه کوي مرسته دې ورسره وکړئ.

### ۳– آرزونه:

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته وکړي.

**پوهه:**

– څوک یو خط رسم وي او په هغه باندې (۲۰) نقطې په مساوي فاصلو سره ښیې؟

– څوک له (۱–۲۰) پورې په عددي خط باندې په ترتیب سره له کیڼې خوا څخه ښيې خوا ته لیکي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي یو خط رسم کړي او په هغه باندې په مساوي فاصلو سره نقطې وښیې.

– زده کوونکي وکړای شي عددونه په ترتیب سره په خط باندې ټاکلی نقطو ته ولیکي.

**ذهنیت:**

د دې مهارت او پوهې په اخستلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د نقطو ټاکل د عددونو په خط باندې او همدارنګه د عددونو ترتیب کول په خط باندې د هندسې مفهومونو له پاره مرسته او زده کوونکي ورته چمتو کوي.

مشق او تمرین

۱ـ د عددونو یو خط په خپلو کتابچو کې رسم کړئ! د هغه په مخ باندې لس ټکي په مساوي فاصلو سره جلا کړئ په ترتیب سره عددونه و کیڼ لوري ته ولیکئ!

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ٦ ۷ ۸ ۹ ۱۰

۲ـ یو زده کوونکی دې د ټولګی مخې ته په قدم وهلو پیل وکړي او نور زده کوونکي دې د هغه قدمونه حساب کړي او د عددونو د خط په مخ باندې دې وښيي. ځواب: د زده کوونکو کار ده.

۳ـ د ۳، ۵، ۲، ۷، ۶او ۴ عددونه په ترتیب سره د عددي خط په مخ ولیکئ.

۲ ۳ ۴ ۵ ٦ ۷

۴ـ د ۹، ۳، ۶، ۲، ۵، ۷، ۱۰، ۸، ۱ او ۴ عددونه په ترتیب سره د کوچنیو عددونو څخه د لویو عددونو خواته ولیکئ!

۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ٦ ۷ ۸ ۹ ۱۰

۵ـ د لاندې عددونو عددي خط نقطي په نظر کې ونیسئ! عددونه په ترتیب سره د کیڼ لوري څخه ښئ لوري ته ولیکئ!

۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ٦ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱٦ ۱۷ ۱۸ ۱۹ ۲۰ ۲۱ ۲۲

کورنی دنده

د عددونو خط په خپلو کتابچو کې رسم کړئ! د ۸، ۶، ۷، ۵، ۴، ۲، ۱ او ۳ عددونه په ترتیب سره د عددونو په خط باندې ولیکئ.

۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ٦ ۷ ۸

۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ٦ ۷ ۸

۳٦

### ۴– کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (۳٦) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي او سبا ته دې له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د دوو لسونو په شا او خوا کې د عددونو پرتله

**دیارلسم لوست، (۳۷ – ۳۸) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی لسونو ته نږدی عددونه یعنی، ۱۰، ۲۰، ۳۰، ۴۰، ...، ۹۰ ته نږدی عددونه تشخیص کړای شي.

**اصطلاحات:** پرتله، شا او خوا، دوو لسونو ته.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو یو دانه، د لرګوټو د لسونو بنډلونه، عددې کارتونه، خط کش او نور محیطی مواد.

### ۱– فعالیتونه:

– ښاغلی ښوونکی دې د ټولو زده کوونکو کورنی دنده وګوري د ځان د متیقن کیدو له پاره دې دوه زده کوونکی د ټولګی مخې ته را وغواړی دنده دې ورکړئ چې خپله کورنی دنده په تخته باندې خپل نورو ټولګیوالو ته تشریح کړي که چیرې هغوی ونشو کولی، یو داوطلب زده کوونکي ته اجازه ورکړئ چې خپله دنده په عملي توګه په تختې باندې تشریح کړي که چیرې هغه هم ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې په دري ګروپونو باندې وویشی او بیا دې په ګروپی ډول د کتاب (۳۷) مخ مطالعه کړي د حل شوی مثال او پوښتنی څخه په کار اخستنې سره دې (۱)، (۲) ګنې پوښتنې د لرګوټو د بنډلونو په واسطه په ټولګی کې حل کړي. او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن خپل ګروپی کار د نورو ګروپونو غړوته تشریح کړي. ښاغلی ښوونکی دې د ګروپی کار مراقبت کوي که چیری ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د (۳۸) مخ د (۱) ګنې پوښتنې تش ځایونه د کتاب له هدایت سره سم په

**د یار لسم لوست: د دوو لسونو په شا او خواکې د عددونو پرتله**

هدف: زده کوونکي لسونو ته نږدی عددونه یعنی(۱۰، ۲۰، ۳۰، ۴۰، .... ته نږدی عددونه) تشخیص کړای شي.

مثال: د ۲۲ عدد د عددونو په خط باندې په لاندې توګه ښودل شوی دی، د ۲۲ عدد کوم یوه لسونو ته نږدی دی؟ یعنی ۲۰ ته او که ۳۰ ته نږدې دی؟

۲۰ ۲۲ ۳۰

د خط په مخ باندې لیدل کیږي چې د ۲۲ عدد د ۲۰ او ۳۰ عددونو په منځ کې قرار لري ځرنګه چې ۲۲ له ۲۰ څخه د ۲ واحدونو په اندازه او د ۳۰ څخه د ۸ واحدونو په اندازه فاصله لري نو ۲۲ د ۲۰ عدد ته نږدی دی، نسبت د ۳۰ عدد ته نو مونږ ۲۲ د ۲۰ په نژدی والی کې حسابوو.

**پوښتنه:** آیا تاسو ۲۵ په ۲۰ او که په ۳۰ باندې شمېرئ یعنی کوم یوه ته نږدې دی؟

? ؟

۲۰ ۲۵ ۳۰

**ځواب:** ۲۵ د ۲۰ او ۳۰ په منځ کې قرار لري. کله چې داسې پیښیږي مونږ هغه د لوی لس خواته شمېرو یعنی د ۳۰ عدد ته نږدې شمېرو.

پوښتنې:

۱ـ هغه عددونه چې د ۱۰ او ۲۰ په منځ کې قرار لري کوم یې ۱۰ ته او کوم یې ۲۰ ته شمېرل کیږي؟ جلا جلا یې ولیکئ!

ځواب: د ۱۱، ۱۲، ۱۳ او ۱۴ د ۱۰ عدد ته نږدی دي. ۱۵، ۱٦، ۱۷، ۱۸ او ۱۹ و ۲۰ ته نږدي دي.

۲ـ هغه عددونه چې د ۳۰ او ۴۰ په منځ کې قرار لري کوم عددونه چې ۴۰ ته شمېرل کیږي (نژدې دي)؟ ویې لیکئ!

ځواب: ۳۵، ۳٦، ۳۷، ۳۸ او ۳۹ د ۴۰ عدد ته نږدی شمیرل کیږي.

کورنی دنده

د ۹۳، ۹۸، ۹۷، ۹۵ او ۹۱ په عددونو کې کوم یو یې چې ۹۰ او یا ۱۰۰ ته شمېرل کیږي جلا، جلا یې ولیکئ. ځواب: ۹۳ او ۹۱ و ۹۰ ته شمیرل کیږی، ۹۸، ۹۷، ۹۵ و ۱۰۰ ته شمیرل کیږي.

۳۷

خپلو کتابچو کې په مناسب عددونو سره ډک کړي. د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړئ.

### ۲– مشق او تمرین:

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۳۸) مخ ته را وګرزوي (۳) ګنه پوښتنه دې لومړی ګروپ، (۴) ګنه پوښتنه دې دویم ګروپ او (۲) ګنه پوښتنه دې دریم ګروپ د موادو په واسطه حل او وښیې.

او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن خپل د ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې کوم مشکل سره مخامخ کیږی مرسته او لارښوونه وکړئ.

### ۳– آرزونه:

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه

دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې هغوی سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وايي چې د ۳۴، ۳۵، ۶۷ او ۷۱ عددونه کومو لسونو ته نږدې شمیرل کیږي؟

– څوک وايي کوم عددونه (۵۰) ته شمیرل کیږي ؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي هغه عددونه چې ۳۰ او ۴۰ ته نږدې شمیرل کیږي حساب یې کړي.

– زده کوونکي وکړای شي هغه عددونه چې (۸۰) ته نژدی شمیرل کیږي ولیکي.

**ذهنیت:**

د عددونو شمیرل نږدې لسو، د هغو تشیخص کول او پیژندل د زده کوونکو په ذهن کې بدلون را منځ ته کوي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د دوو لســـونو په شـــا او خوا باندې د عددونو پرتله د زده کوونکو له پاره ډیر ارزښت لري. په حساب کولو او شمیرلو کې مرسته کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

د (۳۷ او ۳۸) مخونو کورنۍ دنده دې زده کوونکي په خپلو کتابچو کې ولیکی سبا ته دې ښاغلی ښوونکی ته وښیي.

مشق او تمرین

۲. د عددونو خط ته په پاملرني سره د حل شوي مثال په توګه وشمیرئ او تش ځایونه ډك كړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۶۱ | ۶۰ | ۶۷ | ۷۰ | ۶۵ | ۷۰ |
| ۶۹ | ۷۰ | ۶۳ | ۶۰ | ۶۶ | ۷۰ |

۶۰ ۶۱ ۶۲ ۶۳ ۶۴ ۶۵ ۶۶ ۶۷ ۶۸ ۶۹ ۷۰

۲. د لاندې عددونو خط په نظر کې ونیسئ در کړل شوي عددونه ډیر نږدې لسونو ته وشمیرئ او تش ځایونه ډك كړئ.

۴۰ ۴۱ ۴۲ ۴۳ ۴۴ ۴۵ ۴۶ ۴۷ ۴۸ ۴۹ ۵۰

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۴۴ | ۴۰ | ۴۸ | ۵۰ | ۴۶ | ۵۰ |
| ۴۵ | ۵۰ | ۴۲ | ۴۰ | ۴۴ | ۴۰ |

۳. هغه عددونه چې ۷۰ ته شمیرل کیږي یعنی نږدې دي په خپلو کتابچو کې په ترتیب سره ولیکئ!

۷۱، ۷۲، ___ ۷۳، ___ ۷۴ ___

۶۵، ۶۶، ___ ۶۷، ۶۸، ___ ۶۹ ___

۴. څو عددونه ۵۰ ته شمیر لای شئ یعنی ۵۰ ته نږدې دي؟

ځواب: ۹ عددونه ۵۰ ته نژدې شمیرلای شو.

کورنۍ دنده

د ۷۹، ۷۵ او ۷۶ عددونه کوم یوه لس ته شمیرل کیږي؟

ځواب: پورته عددونه د ۸۰ عدد ته نږدی شمیرل کیږي.

۳۸

# سرلیک: په عددي خط باندې د جمعې عملیه

**څوارلسم لوست، (۳۹) مخ**
**وخت: ۴۵ دقیقې**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د جمعې عملیه په عددي خط باندې سرته ورسوي.
**اصطلاح ګانې:** عددي خط، کار اخیستل، د جمعې عملیه.
**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، قلم، کاغذ او تار.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشئ د زده کوونکو د کتاب د (۳۸) مخ کورنۍ دنده دې زده کوونکي په اړوند ګروپونو کې وګوري اشتباه ګانې دې ولیکل شي. هغو چې اشتباه کړې ده د هغو پام دې د ګروپ د غړو له خوا اشتباه ګانو ته را وګرزول شي. که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ شي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي. د دې له پاره چې پوه شو چې زده کوونکو خپله کورنۍ دنده په خپله سرته رسولې ده او که نه؟ له یوه زده کوونکي مثلاً: له شریف څخه دې پوښتنه وکړي چې ولې په ریاضی کې د ۷۹، ۷۵ او ۷۶ عددونه د ۸۰ عدد ته حساب کوي یا شمیري یا د ۸۰ عدد ته لیکي.

که چیرې شریف پوه نشي ښاغلی ښوونکی دې د هغه پام خپلې اشتباه ته را وګرزوي ورته ودې وایې چې نوموړي عددونه د ۸۰ عدد ته نږدې دي چې تاسو په تیرو لوستونو کې د عددونو تخمین زده کړئ او په یاد یې راوړئ.

– ښاغلی ښوونکی دې یوه زده کوونکي د مثال په توګه زبیر ته دنده ورکړي چې د ټولګي د مخې کیڼ لورې ته ودریږي او نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې یو خط وکاږي. او په فرضي توګه دې د زبیر د دریدلو ځای په خط باندې وټاکي او په نښه دې کړي. بیا دې زبیر ته ووایي چې ښي خوا ته څو قدمونه او له څو قدمونو وروسته ودریږه. مثـــلاً زبیر ٦ قـــدمه وهـــي او بیا ودریږي نور زده کوونکي دې د زبیر د قدمونو شمیر او د دریدو ځای په خط باندې په نښه کړي. ښاغلی ښوونکی دې دویم واری بیا زبیر ته هدایت ورکړي. چې هم هغه ښي لوري ته د مخکنۍ په ادامې سره قدم وهل پیل کړي. زبیر څو قدمونه مثلاً ۴ قدمه وهي او بیا دریږي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایي چې د زبیر خوځیدل دې په نظر کې ونیسي. د هغه د دویم واري د قدم وهلو پیل او پای په یوه خط باندې وښیاست.

– ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو د کار څارنه وکړي، د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي په پای کې دې ګروپونو ته ووایي د زبیر د لومړی واري د قدمونو شمیر، او دویم واري د قدمونو شمیر په خط باندې وښیاست. او په نښه یې کړئ. بیا د هغو ټکو له مخې چې په نښه شوي دي د لومړئ واري او دویم واري قدمونه یو له بله سره جمع او د جمعې حاصل یې د

**څوارلسم لوست : په عددي خط باندې د جمعې عملیه**

هدف : زده کوونکی وکړای شي د جمعې عملیه په عددي خط باندې سرته ورسوي.

**مثال:** د ۱۳=۵+۸ د جمعې عملیه په عددي خط باندې داسي سرته رسوو. لومړی د لاندې عددي خط په مخ باندې د ۸ عدد په نښه کوو، وروسته له هغې په نښه شوې نقطې څخه د ۵ واحدونو په اندازه ښئ خواته حرکت کوو. لیدل کیږي چې د ۱۳ عدد ته رسیږو دا عدد د ۸ او ۵ د عددونو د جمعی حاصل ښیي.

۸+۵=۱۳

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱۶ ۱۷

۸+۵=۱۳

**پوښتنې:**

دلاندې شکلونو له مخې د ریاضي افاده یې ولیکئ او د جمعې عملیه سرته ورسوئ!

۷ + ۷ = ۱۴

۷ + ۷ = ۱۴

۳ + ۷ = ۱۰

۳ + ۷ = ۱۰

**کورنۍ دنده**

لاندې عملیې د عددي خط په مخ باندې سرته ورسوئ.

۳+۴ = ۷

۴ + ۳ = ۷

۳+۶ = ۹

۶ + ۳ = ۹

۳۹

وروستی دریډو په ځای کې د عددونو د خط په مخ باندې تطبیق کړئ.



– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته هدایت ورکړي چې د کتاب (۳۹) مخ خلاص کړي او حل شوی مثال په دقت سره مطالعه کړي. بیا دې ښاغلی ښوونکی یوه زده کوونکي ته دنده ورکړي چې نوموړئ مثال په تخته باندې تشریح کړي. که چیرې له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۳۹) مخ ته را وګرزوی چې د حل شوی مثال په توګه نورې پوښتنې حل کړي ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو په وخت کې د ستونزو په صورت کې لارښوونه وکړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، تن خپل کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ۸ = ۵ + ۳ عملیه د عددونو د خط په مخ باندې ښیي؟

– څوک د لاندې شکل له مخې د ریاضي افاده لیکي او د جمعې د حاصل په شکل یې ښیې.



**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې د عددونو په خط باندې جمع کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۷ | ۵ | ۳ |
| + ۶ | + ۶ | + ۴ |

**ذهنیت:**

په عملي توګه د عددونو په خط باندې د جمعې د عملیې په ښودلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د عددونو په خط باندې د جمعې د عملیې په سرته رسولو سره زده کوونکي د راتلونکو ټولګیو د ریاضي د زده کړې له پاره چمتو کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب (۳۹) مخ کورنۍ پوښتنې حل او له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د عددونو په خط باندې د تفریق عملیه

**پنځه لسم لوست، (۴۰ – ۴۱) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي په عددي خط باندې د تفریق عملیه سر ته ورسوي.
**اصطلاح ګاني:** عملیه، د عددونو خط.
**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، کاغذ او نور محیطي ساده مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې په دري ګروپونو باندې وویشل شي او د هر یوه کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي. اشتباه ګاني دې پرتخته ولیکل شي بیا دې اشتباه ګانې په ګروپونو کې صحیح شي او هغو زده کوونکو چې اشتباه کړې ده د هغوی پام دې اشتباه ګانو ته را وګرزول شي. ښاغلی ښوونکي دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن هغه زده کوونکی د ټولګی مخې ته را وغواړي چې اشتباه یې کړې وي. او د کورنۍ دندې یوه، یوه پوښتنه دې پرتخته حل کړي. چې معلوم شي نومړو، زده کوونکو خپلې اشتباه ګانې صحیح کړې دي او که نه؟ که چیرې له کومو ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې یو زده کوونکي مثلاً فهیم ته دنده ورکړي چې د ټولګی مخې ته راشي د ټولګی له کیڼ لوري څخه دې وښې لوري ته قدم وهل پیل کړي. (د پیل نقطه دې د صفر د نقطې په توګه ومنې) او حرکت دې وکړي فرض کوو چې هغه ۸ قدمونه ووهل. نور زده کوونکي دې په ګروپونو کې د یوه خط په مخ باندې د پیل ټکی (نقطه) وټاکي. او د قدمونو شمیر دې د هغه خط په مخ باندې په نښه کړي. او د پای (ختم) ټکی دې هم په نښه کړي او د یوی جهت لرونکي منحني په واسطه دې وښیي. ښاغلی ښوونکی! فهیم ته هدایت ورکړئ . له هغې وروستی نقطې څخه بیرته وکیڼ لوري (شاته) ته څو قدمونه ووهي که چیرې هغه ۳ قدمونه ووهي نور زده کوونکي دې بیا

## پنځلسم لوست: د عددونو په خط باندې د تفریق عملیه

هدف: زده کوونکي وکړای شي په عددي خط باندې د تفریق عملیه سرته ورسوی.

۱ مثال: غواړو د عددي خط په مخ باندې د ۱۱ له عدد څخه د ۶ عدد تفریق کړو. د عددي خط په مخ باندې د صفر له نقطې څخه د ۱۱ واحدو په اندازه ښئ خواته حرکت کوو. وروسته د هم هغه عددي خط په مخ باندې د ۱۱ له عدد څخه و کیڼې خواته د ۶ واحدو په اندازه شاته ګرزو او حرکت کوو. لیدل کیږي داسې نقطې ته رسیږو، چې د ۵ عدد راښیې. د شکل له مخې معلومیږي چې د ۵ د رقم او د حرکت د لومړنی نقطې تر منځ واټن ۵ واحده دئ. او په ریاضي کې د هغه عملیه داسې لیکو.

۱۱-۶ = ۵



۲ مثال: د صفر له نقطې څخه ښئ خواته ۱۲ واحده حرکت کوو تر څو د ۱۲ نقطې ته ورسیږو. وروسته له هغه د ۱۲ د نقطې څخه د ۸ واحدو په اندازه کیڼې خواته ګرزو لیدل کیږي چې د ۴ نقطې ته رسیږو دهغه عملیه داسې لیکو.




د عددي خط څخه په کار اخستنې سره د تفریق لاندې عملیې سرته ورسوئ.




۴۰

هم په ګروپونو کې د بیرته را ګرځیدو د قدمونو شمیر حساب کړي او د یوي جهت لرونکي منحني په واسطه دې وښيې او هغه نقطه چې فهیم په دویم واري ولاړ دی په نښه دې کړي. لکه لاندې شکل. بیا دې د شکل له منحنې د تفریق عملیه ولیکي او حل دې کړي. باید داسې: ۵=۳–۸ ولیکي.




په دې صورت کې زده کوونکي باید دې نتیجې ته ورسیږي چې د افادې د تفریق حاصل او د عددونو د خط په مخ باندې دواړه د ۵ عدد ښیې، که چیری زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته ورسره وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دې دا فعالیت د ښوونځی په واټ (میدان) کې د یوي لوبې په شکل سرته ورسوي. او بیا زده کوونکو ته وواياست چې د خپل کتاب (۴۰) مخ خلاص کړئ. لومړی مثال په ډیر دقت سره مطالعه کړي چې څرنګه او په څه ډول په شکلونو کې تطبیق شوی دی چې د عددونو په خط باندې د پوښتنو حل زده کړي د اړتیا په وخت کې دې مرسته ورسره وشي.

– ښاغلی ښوونکی د کتاب د (۴۰) مخ د (۱) پوښتنې په برخه کې زده کوونکو ته ووایاست چې د (۱) پوښتنې د (الف) برخه دې لومړی ګروپ، (ب) برخه دې دویم ګروپ او د (ج) برخه دې دریم ګروپ کار وکړي د حل شوي مثال څخه په کار اخستنې سره د شکلونو له مخې تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړئ. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن خپل ګروپي کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی! یو تن زده کوونکئ دې د کتاب د (۴۱) مخ (۱) پوښتنې ته (?=۷–۱٦) د عددونو د خط په مخ پرتخته حل کړي د ستونزو په صورت کې دې ښاغلی ښوونکی مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې د همدې مخ (۲) پوښتنه لومړی ګروپ ته ۳ پوښتنه دویم ګروپ ته ورکړئ چې حل یې کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه، یو، یو تن خپل ګروپي کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې لارښوونه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ۷، ۲ او ۹ عددونه د عددونو د خط په مخ باندې ښیي؟

– څوک د (۲=۴–٦) عملیه د عددونو د خط په مخ باندې ښیي؟

– څوک د لاندې عددونو د خط له مخې د هغه د عملیې افاده لیکي؟




**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د $\frac{۷}{۴}$ _ عملیه د عددونو د خط په مخ وښیي او حل یې کړي.

– زده کوونکي وکړائ شي د ۴، ٦ او ۸ عددونه د عددونو د خط په مخ وښیي.




**ذهنیت:**

د عددونو د خط په مخ د تفریق د عملیې په سرته رسولو او ښودلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د عددونو د خط په مخ باندې د تفریق د عملیې په پوهیدو سره زده کوونکی د راتلونکو لوستونو له پاره چمتو کوي او مرسته ورسره کوي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د (۴۱) مخ کورنی دنده حل کړي.

# سرلیک: د ضرب د عملیې مفهوم

**شپاړلسم لوست، (۴۲ – ۴۳) مخونه**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د ضرب عملیه په داسې حال کې چې د جمعې اجزاوي مساوي وي د جمع کولو د ډېرې لنډې طریقې په مفهوم وپېژني.

**اصطلاح ګانې:** ډېره لنډه، طریقه، د جمعې اجزاوي، مساوی.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، (+، = او ×) د نښو کارتونه، د شکلونو چارتونه او نور د چاپېریال ساده مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشئ د زده کوونکو کورنۍ دنده دې د کتاب د (۴۱) مخ د هدایت سره سم وکتل شي. د زده کوونکو اشتباه ګانې په درې باندې ولیکئ د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې په ګروپونو کې د لرګوټو او هغو کارتونو څخه چې نښې ورباندې لیکل شوي دي کار واخلي او د جمعې د څلورو او مساوي اجزاو د جمعې حاصل په دې ترتیب په میز باندې وښيي:

(||| + ||| + ||| + ||| = ||||||||||||)

بیا دې ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایي چې د ترتیب شوو لرګوټو له مخې د هغو د جمعې افاده جوړه کړئ او د جمعې حاصل په لاس راوړئ. زده کوونکي باید داسې کار وکړي: ۱۲=۳+۳+۳+۳

– ښاغلی ښوونکی دې دویم واري زده کوونکو ته ووایي د جمعې هغه اجزاوی چې تاسو ترتیب کړي دي وشمیري. د هغو شمیر د جمعې له یوه جز سره ضرب کړئ (?= ۳ × ۴) د (۳) ژبنۍ ضرب چې په دویم ټولګي کې

شپږم فصل

ضرب

شپاړلسم لوست :د ضرب دعملیې مفهوم

هدف : زده کوونکي د ضرب عملیه چې د جمعې اجزاوي مساوي وي د جمعې کولو د ډیری لنډې طریقې په مفهوم وپیژنی.

د زده کوونکو فعالیت په ټولګی کې

لاندې شکلونه په نظر کې ونیسئ او په شفاهي توګه ورته ځواب ووایاست.

۱- په څو ښاخونو باندې دوه، دوه الوتونکي مرغۍ ناستې دي؟ ټولې څو کیږي؟



ځواب:
ټوای ۴ مرغۍ دي.

۲- څو ګلدانۍ وینئ؟ په هره ګلدانۍ کې څو ګلان دي؟ ټول څو ګلان کیږي؟



ځواب:
دواړو ګلدانوته ګورو چې په هر یوه کې ۴ ګلان دی نو ټول ۸ ګلان کیږی.

۱ مثال :



څو قابه دي؟ په هر قاب کې څو ناکونه دي؟ د ټولو ناکونو شمېر څو کیږي؟

۲+۲+۲+۲=۸

په پورته عملیه کې د ۲ رقم ۴ واري لیدل کیږي په دې معنا چې: ۴ واري ۲ د ۸ سره مساوي کیږی او د ضرب په شکل یې داسې لیکو. ۸=۴ × ۲ داسې لوستل کیږي،۲ضرب د ۴ مساوي له ۸ سره



مو لوستلی دي د ضرب حاصل پیدا کړئ (۱۲=۳ × ۴).

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست د جمعې حاصل او د ضرب حاصل یو له بله سره پرتله کړئ. له پرتله کولو څخه به دې نتیجې ته ورسیږئ چې د دواړو افاده د جمعې حاصل او د ضرب حاصل عیني عدد یعني مساوي دی.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. که چیرې د جمعې د اجزاوو شمیر زیات وي د هغو د جمعې د حاصل په لاس راوړل زیات وخت نیسي او کاغذ هم ورباندې زیات مصرف کیږي. تاسو کولی شي د جمعې د هغې عملیې په ځای چې مساوي اجزاوي ولري د ډېرې لنډې عملیې یعنی د ضرب له عملیې څخه کار واخلئ.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته هدایت ورکړئ چې د خپل کتاب (۴۲) مخ خلاص کړي د کتاب له هدایت سره سم شکلونه په نظر کې ونیسي (۱) او (۲) ګڼه پوښتنو ته ځواب ووایاست که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې د (۴۲) مخ (۱) مثال او د (۴۳) مخ (۲) او۳ مثالونه په دقت سره مطالعه کړي بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن زده کوونکی مثالونه پرتخته تشریح کړي د ستونزو په صورت کې دې لارښوونه وشي.

**۲– مشق او تمرین:**

– د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د جمعې یوه عملیه په ضرب باندې بدله کوي؟

– څوک د ۵ لسیو د جمعې حاصل په آسانه طریقه سره پیدا کوي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړائ شی د دې په ځای چې (٦) داني لسیه یو له بله سره جمع کړي او د جمعې حاصل په لاس راوړي. هغوی یو لسی په (٦) کې ضرب کوي او حاصل یې په لاس راوړي.

– زده کوونکي وکړائ شي که چیرې د جمعې اجزاوې مساوي یا عین عدد وي یو جز یې د اجزاو په شمیر کې ضرب او د ضرب حاصل په لاس راوړي.

**ذهنیت:**

د جمعې د طریقې سره یوه بله آسانه طریقه چې ضرب ده، د دې په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

۲ مثال: د لاندې عددي خط په مخ باندې د ضرب افاده په پام کې نیسو:

۰ ۱ ۲ ۳ ٤ ٥ ٦ ۷ ۸ ۹ ۱۰

۲+۲+۲+۲+۲=۱۰

۲×٥=۱۰

۳ مثال:

شپږ ستوري په څو ګروپونو کې وینئ ټول څو ستوري کیږي؟

٦+٦+٦+٦=۲۴

هغه د ضرب په شکل داسې لیکو: ٦×۴=۲۴

مشق او تمرین

۱- د لاندې شکلونو د جمعې او ضرب افادې ولیکئ!

۲- د چاپیریال د موادو په واسطه د ۳×۴ افاده د جمعې په شکل وښیاست!

۳- ۱-د لاندې عددونو مجموعه د ضرب په شکل سره ولیکئ او حل یې کړئ.

۵+۵+۵+۵+۵+۵+۵+۵

۵ × ۸ = ۴۰

کورنی دنده

مخامخ شکلونه په نظر کې ونیسئ د هغو د جمعې او ضرب افادې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او حل یې کړئ!

۹ + ۹ + ۹ + ۹ + ۹ + ۹ = ٥٤

٦ × ۹ = ٥٤

۴۳

**ارزښت:**

زده کوونکي د جمعې د عملیې له پاره د ضرب د عملیې څخه په کار اخستنې سره کولای شی خپلې ورځنی ستونزې په آسانه طریقه سره حل کړي چې د راتلونکی لوستونو له پاره هم ګټه رسوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (۴۳) مخ کورنۍ دندې پوښتنه د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د ضرب د عمليې مفهوم

**شپاړلسم لوست، (۴۴ – ۴۵) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د ضرب عملیه په داسې حال کې چې د جمعې اجزاوې مساوي وي د جمع کولو د ډېرې لنډې طریقې په مفهوم یې وپېژني.

**اصطلاح ګانې:** ډېره لنډه، طریقه، د جمعې مساوي اجزاوې.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د عددونو کارتونه، د ضرب جدول.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. د زده کوونکو کورنۍ دنده دې په جلا، جلا ډول ولیدل شي پام وکړئ چې زده کوونکو د کتاب له هدایت سره سم کورنۍ دنده سرته رسولې ده او که نه؟ که چیرې زده کوونکو اشتباه کړې وي اشتباه ګانې دې په درې باندې ولیکل شي. بیا دې په خپله د ګروپ په واسطه د هغو صحیح ځوابونه پیدا شي. او ښاغلي ښوونکی دې د ګروپونو د کار د جریان مراقبت کوي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري ښاغلي ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي.

– ښاغلي ښوونکی د دې لپاره چې تیر لوست د زده کوونکو په یاد راوړل شي. هر ګروپ ته په وار سره لرګوټي ورکړئ. چې په مختلف ځایونو کې ۴، ۴ دانې لرګوټي کښېږدي لومړی جمع او بیا هغه د ضرب په طریقې سره حل کړي داسې:

۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ =

_____ × _____ =

زده کوونکي باید د دواړو حاصل داسې پیدا کړي:

۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ + ۴ = ۲۴

۶ × ۴ = ۲۴

**دیوه رقمي عدد ضربول په دوه رقمي کې**

هدف: زده کوونکي وکړای شي یو رقمي عدد په دوه رقمي کې ضرب کړي.

دیوه رقمي عدد ضربول په دوه رقمي کې:

تاسو په دویم ټولګي کې د دوه رقمي او یو رقمي عددونو ضرب ولوستل اوس د لاښه پوهیدو د پاره د ٦٣× ۵ د ضرب حاصل له نظره تیره وو. په دې پوښتنه کې لومړی ۵ د یویزو له رقم یعنی ۳ سره ضرب کوو چې ۱۵ کیږي د ۵ رقم د ضرب حاصل د یویزو په مرتبه کې لیکو د لسیزو مرتبه یې چې له ۱ لس څخه عبارت دي د لسیزو په سر یې یاد داشت کوو. لکه:

$$\begin{array}{r} \overset{1}{6}3 \\ \times\ 5 \\ \hline 5 \end{array}$$

اوس ۵ د لسیزو په مرتبه یعنی ۶ کې ضربوو چې د ضرب حاصل یې ۳۰ کیږي او د حاصل سره یې چې یاد داشت شوی دی جمع کوو او په حاصل ضرب کې یې لیکو.

$$\begin{array}{r} \overset{1}{6}3 \\ \times\ 5 \\ \hline 315 \end{array}$$




لاندې عددونه یو له بل سره ضرب کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۵ × ۸ = ۱۲۰ | ۴۱ × ۸ = ۳۲۸ | ۲۵ × ۷ = ۱۷۵ | ۴۴ × ٦ = ۲٦٤ |
| ۲۵ × ۹ = ۲۲۵ | ۳۰ × ٦ = ۱۸۰ | ۵۳ × ۷ = ۳۷۱ | ۲۲ × ٦ = ۱۳۲ |




– په همدا ډول ښاغلي ښوونکی دې د عددونو کارتونه د ضرب په شکل یو د بل تر څنګ کښېږدي او زده کوونکو ته دې ووایي د جدول په کارولو سره د ضرب حاصل پیدا کړئ. زده کوونکی د هغو د ضرب حاصل پیدا کوي. ښاغلي ښوونکی دې زده کوونکو ته هدایت ورکړی چې د کتاب (۴۴) مخ خلاص کړي د پوښتنو له دقیقې مطالعې وروسته له حل شوي مثال څخه په کار اخستنې سره په ګروپونو کې حل کړئ.

– ښاغلي ښوونکی د ګروپونو د کار څخه څارنه وکړئ که چیرې له کوم ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ. بیا هغه زده کوونکي چې ګروپې کارته لږ پام نیسي له هغو څخه دې د حل شوي پوښتنو په برخه کې پوښتنې وشي چې په درې باندې حل کړي. که چیرې بیا هم زده کوونکي ونشي کولای پوښتنې حل کړي. د هغو پام خپلو اشتباه ګانو ته را وګرزوئ چې حل یې کړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۴۵) مخ ته راوګرزوي د (۳ او ۴) ګڼې پوښتنې دې د کتاب له هدایت سره سم په ګروپونو کې کار وکړي او تش ځایونه دې په مناسب عددونو سره ډک کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه، یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته په وار سره تشریح کړي. که چیرې د تشریح کولو په وخت کې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلي ښوونکي ډاډ حاصل کړی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک په یوه مثال کې داسې جمع ښیې چې مساوي اجزاوې ولري د حاصل د پیدا کولو ډېره لنډه طریقه یې یعنی د ضرب عملیه هم وښیې؟

– څوک د جمعې (۲۱=۳+۳+۳+۳+۳+۳+۳) عملیه په ډېره لنډه طریقه د ضرب سره لیکې؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي لاندې د جمعې عملیې چې مساوي اجزاوې ولري د هغو حاصل د ضرب په طریقې سره پیدا کړي.

۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰=? ، ۵+۵+۵+۵+۵=?

۹+۹+۹+۹+۹+۹=? ، ۱۱+۱۱+۱۱+۱۱=?

**ذهنیت:**

د دې لنډې طریقې په پوهېدو او سرته رسولو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي بې له ځنده له دې لنډې طریقې څخه د ورځنې ژوند په راکړه او ورکړه کې کار اخلي په آسانۍ سره خپل او د نورو ستونزې حل کولی شي.

۳_ تش ځایونه د زباني ضرب او د ضرب د معلوم جز څخه په کار اخستنې سره په مناسب عددونو سره ډك کړئ.

۱۸ - ۲ × ۹ ، ۲۷ - ۳ × ۹ ، ۱٦ - ۴ × ۴

۲۴ - ۸ × ۳ ، ۲۴ - ٦ × ۴ ، ۳۵ - ۷ × ۵

۴_ د کیڼ لوری د جدول له بشپړ کولو وروسته د لوبیا، وړو ډبرو، لرګونو او نور. د چاپیریال توکو څخه په کار اخستنې د ښي لوري د جدول تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډك کړئ!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ | - | ۵ | × | ۵ |
| ۳۰ | - | ۵ | × | ٦ |
| ۳۵ | - | ۵ | × | ۷ |
| ۴۰ | - | ۵ | × | ۸ |
| ۴۵ | - | ۵ | × | ۹ |
| ۵۰ | - | ۵ | × | ۱۰ |

→

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ | - | ۵ | × | ۵ |
| ۳۰ | - | ٦ | × | ۵ |
| ۳۵ | - | ۷ | × | ۵ |
| ۴۰ | - | ۸ | × | ۵ |
| ۴۵ | - | ۹ | × | ۵ |
| ۵۰ | - | ۱۰ | × | ۵ |

کورنۍ دنده

۵_ د لوبیا، وړو ډبرو او یا نورو. چاپیریال توکو څخه په کار اخستنې سره د لاندې جدول تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډك کړئ!

| ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ٦ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ | × |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ٦ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ | ۱ |
| ۲۰ | ۱۸ | ۱٦ | ۱۴ | ۱۲ | ۱۰ | ۸ | ٦ | ۴ | ۲ | ۲ |
| ۳۰ | ۲۷ | ۲۴ | ۲۱ | ۱۸ | ۱۵ | ۱۲ | ۹ | ٦ | ۳ | ۳ |
| ۴۰ | ۳٦ | ۳۲ | ۲۸ | ۲۴ | ۲۰ | ۱٦ | ۱۲ | ۸ | ۴ | ۴ |
| ۵۰ | ۴۵ | ۴۰ | ۳۵ | ۳۰ | ۲۵ | ۲۰ | ۱۵ | ۱۰ | ۵ | ۵ |

۴۵

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۴۵) مخ د ۵ پوښتنې جدول په مناسب عددونو سره ډک کړي.

# سرلیک: د ٦ او ٧ د زباني ضرب جدول

**اووه لسم لوست، (٤٦، ٤٧) مخونه**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه يي)**

**هدف:** زده کوونکي د ٦ او ٧ زباني ضرب مشق او تمرين وکړي او کار ورځخه واخيستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** زباني ضرب.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لوبيا داني، شکلونه او نور محيطي مواد.

**١ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وويشئ بيا دې د هغوی کورنی دنده په دقت سره وګوري وروسته دې زده کوونکي په ګډه سره د کورنی دندې جدولونه په ګروپونو کې وګوري که چيری کوم زده کوونکي اشتباه کړې وي د ګروپ د غړو له خوا دې اشتباه ورته وويل شي او صحيح دې شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې د اشتباه ګانو صحيح ځوابونه په درې باندې تشريح کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې د ۲، ۳، ۴ او ۵ د عددونو زباني ضرب چې په دويم ټولګی کې مو لوستلي دي يو ځلی بيا تکرار کړئ.

بيا دې ښاغلی ښوونکئ له هر ګروپ څخه يو، يو تن د ټولګی مخې ته را وغواړي، يو دې د ۲، بل دې د ۳ په همدې ډول تر ۵ پورې دې زباني ضرب تکرار کړي. که چيری هغوی ستونزې ولري ورته ووایاست چې په راتلونکی لوست کې له (۲–۵) زباني ضرب تکرار کړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست لاندې جدولونه چې په هغو کې د لرګوټو په واسطه د ٦ او ٧ زباني ضرب ښودل شوی دی په خپلو کتابچو کې رسم کړی:

تاسو په پورته جدولونو کې ويني څه ډول د لرګوټو په

اووه لسم لوست: د ۶ او ۷ د زباني ضرب جدول

هدف: زده کوونکي د ۶ او ۷ زباني ضرب زده کړي او کار ور څخه واخيستلي شي.

پاملرنه و کړئ!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٧ | = | ٧ | × | ١ |
| ١٤ | = | ٧ | × | ٢ |
| ٢١ | = | ٧ | × | ٣ |
| ٢٨ | = | ٧ | × | ٤ |
| ٣٥ | = | ٧ | × | ٥ |
| ۴٢ | = | ٧ | × | ۶ |
| ۴٩ | = | ٧ | × | ٧ |
| ۵۶ | = | ٧ | × | ٨ |
| ۶٣ | = | ٧ | × | ٩ |
| ٧٠ | = | ٧ | × | ١٠ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۶ | = | ۶ | × | ١ |
| ١٢ | = | ۶ | × | ٢ |
| ١٨ | = | ۶ | × | ٣ |
| ٢۴ | = | ۶ | × | ۴ |
| ٣٠ | = | ۶ | × | ۵ |
| ٣۶ | = | ۶ | × | ۶ |
| ۴٢ | = | ۶ | × | ٧ |
| ۴٨ | = | ۶ | × | ٨ |
| ۵۴ | = | ۶ | × | ٩ |
| ۶٠ | = | ۶ | × | ١٠ |

کورنۍ دنده

د جدول له مخې ٦ او ٧ د زباني ضرب له ياده زده کړی.

| × | ١ | ٢ | ٣ | ۴ | ۵ | ٦ | ٧ | ٨ | ٩ | ١٠ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ٧ | ٧ | ١۴ | ٢١ | ٢٨ | ٣۵ | ۴٢ | ۴٩ | ۵٦ | ٦٣ | ٧٠ |
| ٨ | ٨ | ١٦ | ٢۴ | ٣٢ | ۴٠ | ۴٨ | ۵٦ | ٦۴ | ٧٢ | ٨٠ |

۴۶

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١ × ٦ = ٦ | ٦ دانې لرګوټي | | | | | | | | | | ////// | ١ |
| ٢ × ٦ = ١٢ | ١٢ دانې لرګوټي | | | | | | | | | ////// | ////// | ٢ |
| ٣ × ٦ = ١٨ | ١٨ دانې لرګوټي | | | | | | | | ////// | ////// | ////// | ٣ |
| ۴ × ٦ = ٢۴ | ٢۴ دانې لرګوټي | | | | | | | ////// | ////// | ////// | ////// | ۴ |
| ۵ × ٦ = ٣٠ | ٣٠ دانې لرګوټي | | | | | | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ۵ |
| ٦ × ٦ = ٣٦ | ٣٦ دانې لرګوټي | | | | | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ٦ |
| ٧ × ٦ = ۴٢ | ۴٢ دانې لرګوټي | | | | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ٧ |
| ٨ × ٦ = ۴٨ | ۴٨ دانې لرګوټي | | | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ٨ |
| ٩ × ٦ = ۵۴ | ۵۴ دانې لرګوټي | | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ٩ |
| ١٠ × ٦ = ٦٠ | ٦٠ دانې لرګوټي | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ////// | ١٠ |

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١ × ٧ = ٧ | ٧ دانې لرګوټي | | | | | | | | | | /////// | ١ |
| ٢ × ٧ = ١۴ | ١۴ دانې لرګوټي | | | | | | | | | /////// | /////// | ٢ |
| ٣ × ٧ = ٢١ | ٢١ دانې لرګوټي | | | | | | | | /////// | /////// | /////// | ٣ |
| ۴ × ٧ = ٢٨ | ٢٨ دانې لرګوټي | | | | | | | /////// | /////// | /////// | /////// | ۴ |
| ۵ × ٧ = ٣۵ | ٣۵ دانې لرګوټي | | | | | | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | ۵ |
| ٦ × ٧ = ۴٢ | ۴٢ دانې لرګوټي | | | | | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | ٦ |
| ٧ × ٧ = ۴٩ | ۴٩ دانې لرګوټي | | | | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | ٧ |
| ٨ × ٧ = ۵٦ | ۵٦ دانې لرګوټي | | | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | ٨ |
| ٩ × ٧ = ٦٣ | ٦٣ دانې لرګوټي | | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | ٩ |
| ١٠ × ٧ = ٧٠ | ٧٠ دانې لرګوټي | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | /////// | ١٠ |

واسطه د ٦ او ٧ د زباني ضرب جدولونه لاس ته راغلی دی ليدل کيږي چې ٦، ٦ او يا ٧، ٧ لرګوټي څو واري ايښودل شوي او بيا په ضرب بدل شوی دي په همدې ډول دې زده کوونکي له نورو موادو څخه کار واخلي په ترتيب سره دې کښيږدي او د ضرب جدولونه دې جوړ کړي. ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو د دې فعاليت څارنه

وکړي چې په صحیح توګه یې سرته رسوي او که نه؟ له هغه پرته لارښوونه ورته وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۴٦) مخ ته را وګرزوئ د ٦ او ۷ زباني ضرب دې په دقت سره وکوري په ګروپونو کې دې، له لرګوټو، وړو ډبرو او لوبیا څخه کار واخلي. له هرې لیکې (سطر) سره دې لرګوټي یا نور مواد په ترتیب سره کښیږدي او د ضرب حاصل دې د لرګوټو، وړو ډبرو او لوبیا په واسطه وشمیري.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې د خپل کتاب (۴۷) مخ ته پام وکړي. د مشق او تمرین د پوښتنو تش ځایونه دې د زباني ضرب په کارولو سره ډک کړي.

**۳– آرزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوښتنه:**

– څوک وایې چې ۳ واري ٦ څو کیږي؟

– څوک وایې چې ۴ واري ۷ څو کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.

| | | |
|---|---|---|
| ۷ × ۴ = | ۷ × ۳ = | ۳ × ٦ = |
| ۴ × ۷ = | ۳ × ۷ = | ٦ × ۳ = |
| ۷ × ۵ = | ٦ × ۵ = | |
| ۵ × ۷ = | ۵ × ٦ = | |

**ذهنیت:**

د دې زباني ضرب په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په خوښی سره د ضرب حاصل پیدا کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی کولای شي په پلورلو او رانیولو کې د ضرب په کارولو سره د شیانو قیمت پیدا کړي د دې پوهې په اخستلو سره کولی شي د ځان او نورو ستونزې حل کړي.

کورنی دنده

۱. د زباني ضرب څخه په کار اخستنې سره لاندې تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډك کړئ!

| | |
|---|---|
| ۴ × ۷ = ۲۸ | ۴ × ۸ = ۲۴ |
| ۷ × ۷ = ۴۹ | ۴ × ٦ = ۲۴ |
| ٦ × ٦ = ۳٦ | ۴ × ۷ = ۲۸ |
| ۷ × ۷ = ۴۹ | ۷ × ۵ = ۳۵ |
| ۷ × ۸ = ۵٦ | ٦ × ۵ = ۳۰ |
| ۹ × ٦ = ۵۴ | ۷ × ٦ = ۴۲ |
| ۹ × ۷ = ٦۳ | ٦ × ۸ = ۴۸ |
| ٦ × ۹ = ۵۴ | ۸ × ۷ = ۵٦ |
| ۹ × ۷ = ٦۳ | ۷ × ٦ = ۴۲ |
| ۸ × ٦ = ۴۸ | ۷ × ۵ = ۳۵ |

لاندې عددونه ضرب کړئ!

| | | |
|---|---|---|
| ۵ × ۸ = ۴۰ | ۴ × ۹ = ۳٦ | ۳ × ۷ = ۲۱ |
| ۸ × ۵ = ۴۰ | ۹ × ۴ = ۳٦ | ۷ × ۳ = ۲۱ |

۴۷

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (۴٦ او ۴۷) مخونو د کورنۍ دندو پوښتنې د کتاب له هدایت سره سم حل کړي او له ځانو سره دې راوړي.

## سرلیک: د ٦ او ۷ د زباني ضرب جدول

**اوولسم لوست، (۴۸) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د ٦ او ۷ د زباني ضرب جدول مشق او تمرین کړي او کار ورڅخه واخستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** جدول، زباني ضرب.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لوبیا داني او نور محیطي ساده مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په دري ګروپونو باندې وویشل شي. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي. د هر زده کوونکي اشتباه ګانې دې د ګروپ د غړو له خوا ولیکل شي. بیا دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په درې باندې تشریح کړي. د ځان د ډاډمن کیدو لپاره له هر ګروپ څخه دې یو، یو زده کوونکي خپله اشتباه په تخته باندې رسم کړئ.

– ښاغلی ښوونکی! له هر ګروپ څخه یو، یو تن د ټولګي مخې ته را وغواړئ. چې د ٦ او ۷ زباني ضرب د موادو په واسطه په عملي توګه وښيي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته وکړي. او بیا زده کوونکو ته وواياست. په ګروپ کې دې یو، یو تن د ٦ او ۷ زباني ضرب په جګ غږ سره ولولي .

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۴۸) مخ ته را وګرزوئ او پوښتنې دې په ګروپونو وویشي چې د زباني ضرب په کارولو سره د پوښتنو تش ځایونه د کتاب له

پوښتنې:

۱. لاندې پوښتنې حل کړئ!

| | |
|---|---|
| ۳ × ۸ = ۲۴ | ۴ × ۷ = ۲۸ |
| ۸ × ۳ - ۲۴ | ۷ × ۴ - ۲۸ |
| ۴ × ۸ - ۳۲ | ۵ × ۷ - ۳۵ |
| ۸ × ۴ - ۳۲ | ۷ × ۵ - ۳۵ |
| ۵ × ۸ - ۴۰ | ٦ × ۷ - ۴۲ |
| ۸ × ۵ - ۴۰ | ۷ × ٦ - ۴۲ |

۲. لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ!

(۱) ۳۲ × ۶ = ۱۹۲

(۲) ۶۴ × ۷ = ۴۴۷

(۳) ۴۶ × ۶ = ۲۷۶

(۴) ۷۶ × ۷ = ۵۳۲

کورنۍ دنده

د ۸ او ۷ زباني ضرب جدول په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

ځواب: زده کوونکي دې د تېر لوست په کارولو سره کار وکړي.

۴۸

هدایت سره سم په مناسبو عددونو سره ډک کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې د کارکولو د جریان څارنه او له ګروپونو څخه دې لیدنه وکړي. که چیرې کوم زده کوونکی ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښته:**

– څوک وایې چې د کومو دوو عددونو د ضرب حاصل ۳۲ کیږي؟

– څوک وایې د ۴۲ عدد د کومو دوو عددونو د ضرب حاصل دئ؟

– څوک وایې چې د ۴۸ عدد د څو عددونو د ضرب

کولو څخه په لاس راځي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د زباني ضرب په کارولو سره د لاندې عددونو د ضرب حاصل ولیکي.

$۷ \times ٦ = ?$ $۸ \times ٦ = ?$ $۹ \times ۷ = ?$

$۹ \times ٦ = ?$ $۸ \times ۷ = ?$ $۹ \times ٦ = ?$

**ذهنیت:**

د ٦ او ۷ د زباني ضرب په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی له زباني ضرب څخه د ورځني ژوند په معاملو کې کار اخلي د شیانو په پلورلو او رانیولو کې له ځنډ او ستونزو پرته، د شیانو او جنسونو قیمتونه پیدا کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۴۸) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم په صحیح توګه حل او له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د ۸، ۹ او ۱۰ عددونو د زباني ضرب جدول

**اتلسم لوست، (۴۹) مخ**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د ۸، ۹ او ۱۰ په زباني ضرب باندې پوه شي او په ورځني ژوند کې کار ورځخه واخلي.

**اصطلاح ګانې:** زباني ضرب، د ضرب جدول.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، لرګوټي، د لسونو بنډلونه، د ضرب جدول او نور محیطي مواد.

**۱- فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو باندې وویشل شي. د ٦ او ۷ زباني ضرب دې په وار سره ولولي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د ټولګی مخې ته را وغوښتل شي چې د ٦ او ۷ زباني ضرب ولولي.

– ښاغلی ښوونکی! له هر ګروپ څخه دې یو زده کوونکی یو شمیر لرګوټي، د لسیو بنډلونه او د لوبیا دانې واخلي په وار سره دې ۸، ۸ دانې زیات کړي. او د ګروپ نور غړي دې په هر واري د ۸ شمیر په ۸ کې ضرب کړي. او د ضرب حاصل دې په عملي توګه وشمیری او ودې لیکي په لاندې ډول:

لومړی واري ۱ × ۸ = ۸

دویم واري ۲ × ۸ = ۱٦

دریم واري ۳ × ۸ = ۲۴

څلورم واري ۴ × ۸ = ۳۲

پنځم واري ۵ × ۸ = ۴۰

شپږم واري ٦ × ۸ = ۴۸

اووم واري ۷ × ۸ = ۵٦

اتم واري ۸ × ۸ = ٦۴

نهم واري ۹ × ۸ = ۷۲

لسم واري ۱۰ × ۸ = ۸۰

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د لسم واري په پای کې د کتاب (۴۹) مخ خلاص کړي. د کتاب د ښي خوا جدول دې د خپل کړي کار سره پرتله کړي پام دې ورته وکړي چې یو له بله څه توپیر لري؟

– ښاغلی ښوونکی! په هر ګروپ کې دې یو یو

## اتلسم لوست: د ۸،۹ او ۱۰ عددونو د ژبنی ضرب جدولونه

هدف : زده کوونکی د ۸ ، ۹ او ۱۰ په زباني ضرب پوه شي او په ورځني ژوند کې کار ورځخه واخلي.

د زباني ضرب لاندې هر یو جدول ته پاملرنه وکړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | × | ۱۰ | = | ۱۰ |
| ۲ | × | ۱۰ | = | ۲۰ |
| ۳ | × | ۱۰ | = | ۳۰ |
| ۴ | × | ۱۰ | = | ۴۰ |
| ۵ | × | ۱۰ | = | ۵۰ |
| ۶ | × | ۱۰ | = | ۶۰ |
| ۷ | × | ۱۰ | = | ۷۰ |
| ۸ | × | ۱۰ | = | ۸۰ |
| ۹ | × | ۱۰ | = | ۹۰ |
| ۱۰ | × | ۱۰ | = | ۱۰۰ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | × | ۹ | = | ۹ |
| ۲ | × | ۹ | = | ۱۸ |
| ۳ | × | ۹ | = | ۲۷ |
| ۴ | × | ۹ | = | ۳۶ |
| ۵ | × | ۹ | = | ۴۵ |
| ۶ | × | ۹ | = | ۵۴ |
| ۷ | × | ۹ | = | ۶۳ |
| ۸ | × | ۹ | = | ۷۲ |
| ۹ | × | ۹ | = | ۸۱ |
| ۱۰ | × | ۹ | = | ۹۰ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | × | ۸ | = | ۸ |
| ۲ | × | ۸ | = | ۱۶ |
| ۳ | × | ۸ | = | ۲۴ |
| ۴ | × | ۸ | = | ۳۲ |
| ۵ | × | ۸ | = | ۴۰ |
| ۶ | × | ۸ | = | ۴۸ |
| ۷ | × | ۸ | = | ۵۶ |
| ۸ | × | ۸ | = | ۶۴ |
| ۹ | × | ۸ | = | ۷۲ |
| ۱۰ | × | ۸ | = | ۸۰ |




کورنی دنده

زده کوونکی دې د ۸ او ۹ ژبنی ضرب د کاغذ په ټوټو باندې ولیکي او یاد دې کړي.

ځواب: د زده کوونکو عملی کار دی.




زده کوونکی د مخکني فعالیت په ډول ۹، ۹ دانې لوبیا یا لرګوټي په وار سره زیات کړي او نور زده کوونکي دې په هر واري د ۹ شمیر په ۹ کې ضرب کړي او د ضرب حاصل دې د لوبیا او لرګوټو د شمیرلو په واسطه پیدا کړي په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

لومړی واري ۱ × ۹ = ۹

دویم واري ۲ × ۹ = ۱۸

دریم واري ۳ × ۹ = ۲۷

څلورم واري ۴ × ۹ = ۳٦

پنځم واري ۵ × ۹ = ۴۵

شپږم واري ٦ × ۹ = ۵۴

اووم واري ۷ × ۹ = ٦۳

اتم واري ۸ × ۹ = ۷۲

نهم واري ۹ × ۹ = ۸۱

لسم واري ۱۰ × ۹ = ۹۰

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې خپل دا عملي کار د کتاب د (۴۹) مخ له منځنی جدول سره پرتله کړي. او ودې وایي چې څه توپیر لري؟

– ښاغلی ښوونکی! په ګروپ کې دې یو، یو زده کوونکی د لرګوټو بنډلونه، وار په وار په میز باندې کښېږدي، او نور زده کوونکي دې په هر واري د بنډلونو شمیر په ۱۰ کې ضرب کړي او د ضرب حاصل دې د بنډلونو له شمیر څخه ولیکي. په لاندې ډول:

| | |
|---|---|
| لومړی واري | ۱ × ۱۰ = ۱۰ |
| دویم واري | ۲ × ۱۰ = ۲۰ |
| دریم واري | ۳ × ۱۰ = ۳۰ |
| څلورم واري | ۴ × ۱۰ = ۴۰ |
| پنځم واري | ۵ × ۱۰ = ۵۰ |
| شپږم واري | ٦ × ۱۰ = ٦۰ |
| اووم واري | ۷ × ۱۰ = ۷۰ |
| اتم واري | ۸ × ۱۰ = ۸۰ |
| نهم واري | ۹ × ۱۰ = ۹۰ |
| لسم واري | ۱۰ × ۱۰ = ۱۰۰ |

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې خپل دا عملې کار د کتاب د (۴۹) مخ د کینې خوا له لومړی جدول سره پرتله کړي.
که چیري توپیر ولري ودې وایې.
– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د جدول له پرتله کولو وروسته د (۴۹) مخ جدولونه زده کړي او حافظې ته دې وسپاری.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! هر یو زده کوونکی دې په جلا جلا توګه د (۴۹) مخ د زباني ضرب جدولونه په غور سره ولولی او حافظی ته دې وسپاري.

**۳– ارزیابی:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې ۴ واري ۸ څو کیږي؟
– څوک وایې چې ۵ واري ۹ څو کیږي؟
– څوک وایې چې ۸ واري ۱۰ څو کیږی؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل کړي.

| | |
|---|---|
| ۴ × ۸ = | ۵ × ۹ = |
| ۳ × ۸ = | ٦ × ۹ = |
| ۷ × ۱۰ = | ۸ × ۹ = |
| ۸ × ۱۰ = | ۹ × ۸ = |

**ذهنیت:**

د ۸، ۹ او ۱۰ د عددونو د ضرب په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی په خپل ورځنی ژوند کې د ۸، ۹ او ۱۰ د عددونو د ضرب حاصل ته اړتیا پیدا کوي. په تیره بیا د شیانو د پلورلو او را نیولو په وخت کې چې د ځان ستونزې حل کوي او له نورو سره هم مرسته کوي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکی د کتاب د (۴۹) کورنی پوښتنی د کتاب له هدایت سره سم حل او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د ۸، ۹ او ۱۰ عددونو د زباني ضرب جدول

**اتلسم لوست، (۵۰ – ۵۱) مخونه**

**دويمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يي)**

**هدف:** زده کوونکي د ۹، ۹ او ۱۰ په ژبنۍ ضرب باندې پوه شي او په ورځنۍ ژوند کې کار ورڅخه واخيستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** زباني ضرب، د ضرب جدول، د ضرب حاصل.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، د (۸، ۹ او ۱۰ زباني ضرب جدولونه، شکلونه.

**۱– فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! ۷ تنه زده کوونکي وټاکئ چې د کورنۍ دندې د (۸، ۹ او ۱۰) ژبنۍ ضرب په عملي توګه د ټولګي په مخ کې سرته ورسوي. که چیرې اشتباه کیږي. اشتباه ګاني دې صحیح شي. په اشتباه باندې د پوهیدو لپاره بیا دې دنده ورکړل شي چې د سبا له پاره دویم ځلې کورنۍ دنده سرته ورسوي.

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۵۰) مخ ته را ورګرزوئ. د دې مخ (۱) پوښتنه لومړۍ ګروپ ته، (۲) پوښتنه دويم ګروپ ته او (۳) پوښتنه دریم ګروپ ته ورکړئ. چې په خپل ګروپونو کې د کتاب له هدايت سره سم سرته ورسوي. بيا دې له هر ګروپ څخه يو، يو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي. که چيرې د تشريح کولو په وخت کې ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! د همدې (۵۰) مخ (۴) ګڼه پوښتنه دې زده کوونکي په خپل ګروپونو کې په دقت سره مطالعه کړي. او د کتاب له هدايت سره دې سم کار وکړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د جريان مراقبت کوي

مشق او تمرين

۱- د ۸ زباني ضرب څخه په کار اخستنې سره لاندې تش ځايونه ډك كړئ.

| ۸ | ۱۶ | ۲۴ | ۳۲ | ۴۰ | ۴۸ | ۵۶ | ۶۴ | ۷۲ | ۸۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

۲- د ۹ او ۷ د ژبني ضرب په نظر كې نيولو سره لاندې تش ځايونه ډك كړئ.

| ۹۰ | ۸۱ | ۷۲ | ۶۳ | ۵۴ | ۴۵ | ۳۶ | ۲۷ | ۱۸ | ۹ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷۰ | ۶۳ | ۵۶ | ۴۹ | ۴۲ | ۳۵ | ۲۸ | ۲۱ | ۱۴ | ۷ |

۳- په يوه بڼ كې ۸ هلكان د مڼو په ټولولو بوخت دي كه چيرې هر هلك ۷ دانې مڼې ټولې كړې وي معلوم كړئ چې ټولې يې څو مڼې ټولې كړې دي.

يادونه: لاندې مثال په پام كې ونيسئ.

$24 = 8 \times 3$ يا $24 = 3 \times 8$

۳ ۳ ۳ ۳ ۳ ۳ ۳ ۳

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱۶ ۱۷ ۱۸ ۱۹ ۲۰ ۲۱ ۲۲ ۲۳ ۲۴

د پورته مثال سره سم لاندې پوښتنې په عددي خط باندې حل كړئ.

الف: $9 \times 2 = 18$

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱۶ ۱۷ ۱۸

$2 \times 9 = 18$

ب: $4 \times 6 = 24$

$6 \times 4 = 24$

۵۰

که چيرې کوم زده کوونکی ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۲– مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۵۱) مخ ته را وګرزوئ چې د دې مخ (۱) او (۲) ګڼې پوښتنې د حل شوي مثال په ډول حل کړي. بيا دې يو، يو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي که چيرې کوم ګروپ له ستونزو سره مخامخ کيږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته ورسره وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی پوه شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي:

**پوهه:**

– څوک وايي د ۴۸ عدد له څو واري ۸ څخه لاس ته راغلی دی؟

– څوک وايي د ۶۳ عدد له څو واري ۹ څخه لاس ته راغلی دی؟

– څوک وايي چې څو ۱۰ مساوي له ۹۰ سره کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي باید د ۸، ۹ او ۱۰ زباني ضرب په حافظه کې ولري او له هغو څخه د لاندې پوښتنو په حل کې کار واخستلای شي.

٦ × ٨ =          ٧ × ٨ =          ٩ × ٨ =

٦ × ١٠ =          ٦ × ٩ =          ٨ × ٩ =

**ذهنیت:**

د ۸، ۹ او ۱۰ د زباني ضرب په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن په بشپړه توګه بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د ۸، ۹ او ۱۰ زباني ضرب د زده کوونکو په ورځني ژوند کې په تیره بیا د پلورلو او رانیولو په وخت کې ډیر ارزښت لري. هغوی له څنډ پرته په ډیر آساني سره د شیانو او جنسونو قیمتونه په لاس راوړلای شي. او له نورو سره مرسته کولای شي.

**پاملرنه**

لاندې پوښتنې د حل شوي مثال په ډول حل کړئ.

۱ مثال:

| ۱۲۸ | ۴۷ |
|---|---|
| × ۹ | × ۸ |
| ۱۱۵۲ | ۳۷۶ |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۸ | ۲۴ | ۱۱۴ |
| × ۸ | × ۹ | × ۷ |
| ۳۰۴ | ۲۱۶ | ۷۹۸ |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۸۹ | ۹۸ | ۱۷۸ |
| × ۸ | × ۷ | × ۹ |
| ۲۳۱۲ | ۶۸۶ | ۱۶۰۲ |

۲- د شکل په پام کې نیولو سره د ضرب ریاضیکی افادي ولیکئ.




کورنۍ دنده

ټول زده کوونکي دې ۸، ۹ او ۱۰ زباني ضرب له یاده زده کړي او په خپلو کتابچوکې دې ولیکي.




**۴- کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی! ټوله زده کوونکي باید د ۸، ۹ او ۱۰ په زباني ضرب باندې پوه شي او په تکراري شکل سره د دې عددونو زباني ضرب په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# سرلیک: له (۱–۱۰) د زباني ضرب له جدول څخه د کار اخیستلو طریقه

**نوولسم لوست، (۵۲) مخ**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی د زباني ضرب جدول وپیژني او له هغه څخه کار واخیستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** لیکه (سطر)، ستون، د زباني ضرب جدول.

**د لوست مرستندوی مواد:** د زباني ضرب جدول، خط کش.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وویشئ، بیا لاندې جدول د تختې په مخ باندې رسم کړی په لاندې ډول عددونه له (۱) څخه تر (۱۰) پورې په لیک (سطر) او ستون کې ولیکئ.

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
| ۲ | | | | | | | | | | |
| ۳ | | | | | | | | | | |
| ۴ | | | | | | | | | | |
| ۵ | | | | | | | | | | |
| ٦ | | | | | | | | | | |
| ۷ | | | | | | | | | | |
| ۸ | | | | | | | | | | |
| ۹ | | | | | | | | | | |
| ۱۰ | | | | | | | | | | |

**نولسم لوست: د (۱ - ۱۰) پورې د زباني ضرب له جدول څخه د کار اخستلو طریقه**

هدف: زده کوونکي د زباني ضرب جدول وپیژني او له هغه څخه کار واخستلای شي.

**د لاندې ژبني ضرب جدول ته پاملرنه وکړئ:**

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
| ۲ | ۲ | ۴ | ۶ | ۸ | ۱۰ | ۱۲ | ۱۴ | ۱۶ | ۱۸ | ۲۰ |
| ۳ | ۳ | ۶ | ۹ | ۱۲ | ۱۵ | ۱۸ | ۲۱ | ۲۴ | ۲۷ | ۳۰ |
| ۴ | ۴ | ۸ | ۱۲ | ۱۶ | ۲۰ | ۲۴ | ۲۸ | ۳۲ | ۳۶ | ۴۰ |
| ۵ | ۵ | ۱۰ | ۱۵ | ۲۰ | ۲۵ | ۳۰ | ۳۵ | ۴۰ | ۴۵ | ۵۰ |
| ۶ | ۶ | ۱۲ | ۱۸ | ۲۴ | ۳۰ | ۳۶ | ۴۲ | ۴۸ | ۵۴ | ۶۰ |
| ۷ | ۷ | ۱۴ | ۲۱ | ۲۸ | ۳۵ | ۴۲ | ۴۹ | ۵۶ | ۶۳ | ۷۰ |
| ۸ | ۸ | ۱۶ | ۲۴ | ۳۲ | ۴۰ | ۴۸ | ۵۶ | ۶۴ | ۷۲ | ۸۰ |
| ۹ | ۹ | ۱۸ | ۲۷ | ۳۶ | ۴۵ | ۵۴ | ۶۳ | ۷۲ | ۸۱ | ۹۰ |
| ۱۰ | ۱۰ | ۲۰ | ۳۰ | ۴۰ | ۵۰ | ۶۰ | ۷۰ | ۸۰ | ۹۰ | ۱۰۰ |

**د جدول نه د کار اخېستنې طریقه:**

د ۵ × ۴ د ضرب د پیدا کولو له پاره د ښي لاس یوې ګوتې ته د لومړی لیك د ۴ له عدد څخه کښته خواته حرکت ورکړئ او د کیڼ لاس یوې ګوتې د لومړی ستنې (ستون) د ۵ له عدد څخه ښئ خواته حرکت ورکړئ په نتیجه کې دواړه ګوتې په یوه عدد باندې سره یو ځای کیږي کله چې عدد ولولئ لیدل کیږي چې د ۲۰ عدد دی چې د ۵× ۴ د افادې د ضرب حاصل دی یعنې: ۲۰ = ۵ × ۴




– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو ګروپونو کې د پورته جدول په ډول یو جدول وکاږي. له (۱) څخه تر (۱۰) پورې عددونه د پورته په ډول په لیک (سطر) او ستون کې ولیکی. بیا دې ښاغلی ښوونکی یو زده کوونکی تختې ته را وغواړي او هدایت دې ورته ورکړي چې د کیڼې خوا د لومړی ستون د (۱) عدد د لومړی لیکی (سطر) په عددونو کې ضرب کړي. د ضرب حاصل یې د لیک او ستون د ضرب شوي عدد په تش ځایونو کې چې لیک او ستون یو له بله سره یو ځای کیږي ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی! که چیرې زده کوونکي په دې برخه کې ستونزې ولري مرسته دې ورسره وشي. او بیا زده کوونکو ته وواياست. د کیڼې خوا د لومړی ستون یو، یو عدد په ترتیب سره د لومړی لیک په عددونو کې ضرب کړئ د هم هغه دوو عددونو د ضرب په حاصل د دویم لیک په ډول د لیک او ستون په اړوند تش ځایونو کې ولیکی. دا کار په ګروپي ډول سر ته ورسوئ.

– ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار څخه لیدنه کوي که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته دې ورسره وکړي په پای کې دې ښاغلی ښوونکی د ګروپونو کارونه وګوري چې د جدول ټول تش ځایونه بشپړ شوی دي او که نه؟

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته هدایت ورکړي چې د خپل کتاب (۵۲) مخ خلاص کړي او خپل بشپړ کړی جدول د کتاب له جدول سره پرتله کړي هغه جدول چې زده کوونکو کار کړی دی يو بشپړ جدول دی او که نه؟
– ښاغلی ښوونکی دې د لومړی ګروپ زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د (۳۰) عدد په جدول کې پیدا کړي او له جدول څخه په کار اخستنې سره ووایې چې د کومو دوو عددونو د ضرب حاصل دی. او همدارنګه ښاغلی ښوونکی دې د دویم ګروپ زده کوونکو ته د ۳۵ عدد او د دريم ګروپ زده کوونکو ته د (۴۰) عدد ورکړي چې د لومړی ګروپ په ډول کار وکړي چې د ۳۵ او ۴۰ د عددونو د ضرب اجزاوي د جدول له مخې پیدا کړي.

**۲– مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په دوه کسيزو ګروپونو باندې وويشی چې د کتاب د (۵۲) مخ جدول په دقت سره وګوري او د جدول د کارولو طريقه ولولي. که چيري پوښتنه يا ستونزي ولري ښاغلی ښوونکی دې لارښوونه وکړي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک د ۵٦ او ٦۳ عددونه په جدول کې پیدا کوي او ضربي اجزاوي ښيي؟
– څوک د ۸ او ٦ د ضرب حاصل د جدول له مخې ښيي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د يوه رقمي عددونو د ضرب حاصل د زباني ضرب د جدول له مخې پیدا کړي.
– زده کوونکی وکړای شي د ۳۵، ۴۰، ۴۲، ۷۲ عددونو ضربي اجزاوي د جدول له مخې پیدا کړی.

**ذهنیت:**

د زباني ضرب د جدول په پوهيدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی له کوم ستونزو پرته کولی شي د عددونو د ضرب حاصل او د ضربی اجزاوو عددونه پیدا کړی او له دې جدول څخه د زباني ضرب په مسئلو کې کار واخستلای شي او په نورو ټولګيو کې هم کار ورڅخه واخلي.

**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې په کور کې د رسم کړي جدول په ډول يو جدول رسم کړي او د هغه تش ځايونه دې ډک کړي.

# سرلیک: له (۱–۱۰) د زباني ضرب له جدول څخه د کار اخیستلو طریقه

**نوولسم لوست، (۵۳ – ۵۴) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی د زباني ضرب جدول وپیژني او له هغه څخه کار واخیستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** جدول، زباني ضرب، طریقه.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، د زباني ضرب جدول.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. بیا دې د هغو کورنۍ دنده وکتل شي. هغو زده کوونکو چې په خپل کورنۍ دنده کې اشتباه کړې ده د هغو پام دې اشتباه ګانو ته راواړول شي او پرتخته دې ولیکل شي بیا دې په ترتیب سره د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د ښوونکی یا زده کوونکو په واسطه تشریح شي.

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۵۳) مخ ته را وګرزوئ د لومړۍ ګروپ زده کوونکی دې د زباني ضرب د جدول په کارولو سره د (۱) ګڼې پوښتنې تش ځایونه د هدایت سره سم ډک کړي. بیا د همدې مخ (۲) ګڼه پوښتنه دویم ګروپ او (۳) ګڼه پوښتنه دې دریم ګروپ د هدایت سره سم کار وکړي. وروسته له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن په وار سره د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې زده کوونکي له کومې ستونزې سره مخامخ کیږي مرسته دې ورسره وکړي.

– ښاغلی ښوونکی د (۵۳) مخ (۴) ګڼه پوښتنه ټولو

پوښتنې:

۱ـ ځوابونه په خپلو کتابچو کې په تش ځایونو کې ولیکئ.

| | |
|---|---|
| ۱۰ -۱۰×۱ | ۳۰ -۵×۶ |
| ۴۸ -۶×۸ | ۵۶ -۷×۸ |
| ۳۲ -۴×۸ | ۵۴ -۹×۶ |

۲ـ لاندې عددونه یو له بله سره ضرب کړئ او ځوابونه یې دژبنۍ ضرب په جدول کې پیدا کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ۷ | ۸ | ۹ | ۵ | ۶ | ۴ |
| ۶ × | ۸ × | ۶ × | ۷ × | ۸ × | ۵ × |
| ۴۲ | ۶۴ | ۵۴ | ۳۵ | ۴۲ | ۲۰ |

۳ـ په متناوب ډول، اته، اته وشمیرئ او تش ځایونه ډك کړئ.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | ۱۶ | ۲۴ | ۳۲ | ۴۰ | ۴۸ | ۵۶ | ۶۴ | ۷۲ | ۸۰ |

۴ـ دزباني ضرب څخه په کار اخستنې سره لاندې تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډك کړئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۰ | ۹ | ۹ | ۸ | ۰ |
| ۶ × | ۵ × | ۶ × | ۹ × | ۰ × |
| ۰ | ۴۵ | ۵۴ | ۷۲ | ۰ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷ | ۶ | ۸ | ۸ |
| ۰ × | ۹ × | ۱ × | ۰ × |
| ۰ | ۵۴ | ۸ | ۰ |

۵۳

ګروپونو ته ورکړئ چې حل یې کړي. ښاغلی ښوونکې دې د کار د جریان مراقبت کوي که چیرې کوم ګروپ اشتباه کړې وي. په تخته دې ولیکل شي او د یوه زده کوونکي په واسطه دې حل شي. برسیره په هغه که کوم مشکل ولري لاربنوونه دې وشي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۵۴) مخ ته را وګرزوئ ورته وواياست چې (۵، ۶ او ۷) ګڼې پوښتنې په ګروپونو کې حل کړي. د هغه کار دې وکتل شي که چیرې اشتباه یې کړې وي مرسته دې ورسره وشي.

**۳– ارزونه:**

د دې لپاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه، له زده

کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د (۹، ۷) او (۸، ٦) د عددونو د ضرب حاصل په جدول کې ښيې؟

– څوک د ۵٦ عدد د زباني ضرب په جدول کې پیدا او ضربي اجزاوې په جدول کې ښيې؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي د لاندې عددونو د ضرب حاصل او د تش ځایونو عدد د زباني ضرب په جدول کې وښيي.

۷ × □ =٦۳ ، □ × ٦ = ۳٦ ، ۹ × ۸ = ?

□ × ۸ = ۷۲ ، ۵ × □ = ۴۵ ،۷ × □ = ۵٦

۸ × ۸ = ? ، ۷ × ۷ = ? ، ۹ × ۹ = ?

**ذهنیت:**

د دې ډول د ضرب حاصل او د ضرب د اجزاو په پیدا کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي هغوی د دې طریقې په کارولو سره خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکی کولی شي د دې پوهې څخه په ورځنۍ ژوند کې کار واخلي د زباني ضرب په پوهیدو خپلې ستونزې حل کړي. د زباني ضرب په یادولو سره د ضرب له جدول څخه پرته د ضرب حاصل او یا د ضرب اجزاوې پیدا کړي.

۵_ په ۸، ٦ او ۴ عددونو کې ډیر لوی عدد له ډیر کوچنی عدد سره ضرب او د ضرب حاصل یې پیدا کړئ.

۸
× ۴
۳۲

٦_ لطیفی ۹ قطیه تباشیر راونیول که چیری په هر قطی کې ۸ قلمه تباشیر وي معلوم یې کړی چې لطیفي څو قلمونه تباشیر رانیولی دي؟
ځواب: ۹ × ۸ = ۷۲

۷_ د زباني ضرب د جدول په مرسته لاندې جدول ډك کړئ؟

| × | ۸ | ۷ | ۹ | ۵ | ٦ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | ٦۴ | ۵٦ | ۷۲ | ۴۰ | ۴۸ |
| ۷ | ۵٦ | ۴۹ | ٦۳ | ۳۵ | ۴۲ |
| ۹ | ۷۲ | ٦۳ | ۸۱ | ۴۵ | ۵۴ |

کورنی دنده

زده کوونکی دې لاندې پوښتنې حل کړي.

(۱) ۲۲ × ۹ = ۱۹۸
(۴) ۱۵ × ۸ = ۱۲۰
(۲) ۱۴ × ۷ = ۹۸

۵۴

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۵۴) مخ کورنۍ دندې پوښتنې حل او له ځانو سره دې راوړي.

# سرليک: د ضرب په عمليه کې د بدلون (تبديلی) خاصيت

**شلم لوست، (۵۵) مخ**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي که چيرې د ضرب په يوه عمليه کې د ضرب د اجزاوو ځايونه سره بدل شي د ضرب حاصل بدلون نه مومي.

**اصطلاح ګاني:** خاصيت، اجزاوی، بدلون، عمليه.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لوبيا داني او نور محيطي ساده مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په دری ګروپونو باندې وويشل شي. د هر زده کوونکی کورنی دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي. اشتباه ګاني دې په تخته وليکل شي. او د هر زده کوونکی اشتباه دې د اړوند ګروپ په واسطه صحيح شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې پرتخته تشريح کړي او يا د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وشي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې يوه اندازه لوبيا يا نور محيطي مواد په خپل ګروپونو کې کښيږدي له دې تيار شوي موادو څخه دې ۵ ګروپونه ۴ دانه يې په ميز باندې وښيي ۴ دانه يې ګروپونه دې د جمعي د اجزاوو په توګه وليکي. او بيا دې د ترتيب شوو موادو له مخې د هغو د ضرب افاده وليکي او د ضرب حاصل دې پيدا کړي. ښاغلی ښوونکی دې د دې فعاليت د سرته رسولو مراقبت وکړي.

– ښاغلی ښوونکی په دويم واري ۴ ګروپونه ۵ دانه يې جوړ کړئ د لومړی ځل په ډول د هغو ګروپونه د جمعي د اجزاوو په توګه وليکئ او د ترتيب شوو موادو له مخې د ضرب افاده وليکئ بيا دې لومړی او دويم يعنی د دواړو،

**شلم لوست: د ضرب په عمليه کې د بدلون (تبديلی) خاصيت**

هدف: زده کوونکي په ضرب کې د بدلون په خاصيت پوه او په ضرب کې د بدلون خاصيت سر ته ورسوي.

لومړی مثال: تاسو پوهيږئ چې: ۳۰=٦+٦+٦+٦+٦

يا:

د ضرب لومړی جز | د ضرب دويم جز | د ضرب حاصل

۶ × ۵ = ۳۰

اوس غواړو چې د ۵ عدد ٦ واري جمع کړو.

۳۰=۵+۵+۵+۵+۵+۵

يا:

د ضرب لومړی جز | د ضرب دويم جز | د ضرب حاصل

۵ × ٦ = ۳۰

د دوو پورتنيو افادو له پرتله کولو څخه نتيجه اخستل کيږي چې د ضرب د اجزاو د ځايونو په بدلون سره د ضرب حاصل بدلون نه کوي. يعني:

$۶ \times ۵ = ۵ \times ۶ = ۳۰$

پوښتنې:

۱- د ۵٦= ☐ ×۷ افاده په نظر کې ونيسئ.

الف: د ضرب کوم جز نا معلوم دی؟ ــ ــ ــ ــ ــ ــ

ب: د ۷ عدد د ضرب کوم جز دی؟ ــ ــ ــ ــ ــ ــ

ج: د ۵٦ عدد په څه نامه ياديږي؟ ــ ــ ــ ــ ــ ــ

د: نامعلوم جز يا تش ځای په يوه مناسب عدد سره ډك کړئ.

ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ ــ

کورنی دنده

۲- د ۵٦ =۷× ☐ په افاده کې.

الف: د ضرب کوم جز نامعلوم دی؟ ــ ــ ــ ــ ــ ــ

ب: نامعلوم جز يا تش ځای په يوه مناسب عدد سره ډك کړئ.

ج: د (۱) او (۲) پوښتنو افادې يو له بله سره پرتله کړئ وواياست چې څه توپير لري؟

۵۵

مرحلو عملي کار لاس ته راوړي او نتيجي دې د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي. که چيرى ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د کتاب (۵۵) مخ خلاص کړي حل شوئ مثال دې په دقت سره مطالعه کړي. بيا دې له هر ګروپ څخه، يو يو تن د ټولګی مخې ته راشي کومي زده کړي چې يې له (۵۵) مخ څخه لاس ته راوړي دي ونورو ته دې تشريح کړي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۵۵) مخ ته را وګرزوئ د هغه مخ پوښتني دې په ګروپونو کې حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې پام وکړي چې زده کوونکي پوښـــتنی په صحيح توګه حل کوي او که نه؟ که چيرې زده کوونکي په حل کولو کې اشتباه کوي لارښوونه ورته وکړئ.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکئ ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- ځوک وایې که چیرې د ۹× ۸ د ضرب په عملیې کې د اجزاوو ځایونه یو له بل سره بدل شي د ضرب په حاصل کې څه بدلون راځي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د اړتیا په وخت کې د ضرب په عملیه کې د ضرب د اجزاوو ځایونه یو له بل سره بدل کړي.

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل او نتیجې یو له بله سره پرتله کړي.

?=۸+۸+۸+۸+۸، ?=۹+۹+۹+۹

?=۸×۵، ?=۵×۸،

?=۴+۴+۴+۴+۴+۴+۴+۴+۴

? = ۹ × ۴ ، ? = ۴ × ۹

**ذهنیت:**

د ضرب د دې خاصیت په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د ضرب د بدلون خاصیت د هغو په ورځني ژوند کې ډیر ارزښت لري ځکه هغوی کولای شي د شیانو د پلورلو او رانیولو په وخت کې د هم ډولو شیانو شمیر په قیمت کې او یا قیمت د شیانو په شمیر کې ضرب کړي د ځان او یا د نورو ستونزې حل کړي.

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکی دې د (۵۵) مخ کورنی دنده د هدایت سره سم په خپلو کتابچو کې حل او له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د ضرب په عملیه کې د بدلون (تبدیلي) خاصیت

**شلم لوست، (۵٦) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي که چیرې د ضرب په یوه عملیه کې د ضرب د اجزاوو ځایونه سره بدل شي د ضرب حاصل بدلون نه مومي.

**اصطلاح ګاني:** جزء، اجزاوي، بدلون، خاصیت، عملیه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د زباني ضرب جدول، د عددونو کارتونه او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. د هر ګروپ کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي. کوم زده کوونکو چې اشتباه کړې ده. د هغوی پام دې اشتباه ګانو ته را وګرزول شي. او بیا دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا شي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه پرتخته تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی درې تنه زده کوونکی لکه: زبید، حمید او شریف د ټولګي مخې ته راوغواړي او هغو ته دې د عددونو کارتونه ورکړي چې په خپل لاسونو کې پورته ونیسي.

زبید




حمید



شریف



د زبید په لاس کې د ۴۹ د عدد کارت ورکړئ چې نورو زده کوونکو ته یې وښیې بیا دې حمید او شریف ته وویل شي تاسو کوم کارتونه باید وښیاست چې د هغو د عددونو د ضرب حاصل د زبید د کارت عدد په لاس راوړي. که چیرې حمید او شریف پوه نشي. یو بل زده کوونکی دې د زباني ضرب څخه په کار اخستنې سره هغوی پوه کړي او ورته ووایي چې هر یو د هغوی باید د (۷) د عدد کارتونه په لاس کې ونیسي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدایت ورکړئ چې د خپل کتاب (۵٦) مخ خلاص کړي په ګروپي ډول کار وکړئ د (۳ او ۲) ګڼې پوښتنې خپلو کتابچو ته نقل کړي او د هغو تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي.

د: کوم مفهوم چې د (۱) او (۲) پوښتنو له پرتله کولو څخه لاس ته راغلی په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۳- د حل شوي مثال په ډول تش ځایونه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ.




۴۲ = ۷ × ٦ = ٦ × ۷

۵۴ = ٦ × □ = □ × ٦

۵٦ = ۷ × □ = ۸ × ۷

۱- د کیڼ لوري له ضرب څخه په کار اخستنې سره د ښي لوري ضرب بشپړ کړئ.

۴۲ = □ × ۷ ⟷ □ = ۷ × ٦

٦۳ = ۹ × □ ⟷ □ = ۷ × ۹

□ = □ × ۸ ⟷ □ = ۸ × ۳

۲۴ = ٦ × □ ⟷ □ = ۴ × ٦

□ = □ × ۳ ⟷ ۲۱ = ۳ × ۷

۲- په لاندې پوښتنو کې تش ځایونه ډک کړئ.

الف: □ × ۴ = ۴

ب: ۶ × □ = ۰

ت: ۷ × □ = ۷

۳- لاندې جدولونه بشپړ کړئ.

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | | | ۳۰ | | | ٦۰ | | | ۹۰ | |

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۷ | ۷ | | | ۲۸ | | | ۴۹ | | | |

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۸ | | ۱٦ | | | ۴۰ | | ۵٦ | | ۷۲ | |




په لاندې تشو ځایونو کې داسې عددونه ولیکئ چې د ضرب حاصل بدلون ونکړي.

□ = ۷ × ۴ = ۴ × □

□ = ۸ × □ = ۴ × ۸



**۲- مشق او تمرین:**

- زده کوونکي دې د (۵۵) مخ، (۱) ګڼه پوښتنه له لاربښوونې وروسته خپلو کتابچو ته نقل او د هغې پوښتنې تش ځایونه دې په مناسب عددونو سره ډک کړي.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکئ ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لاربښوونه وشي.

**پوهه:**

- څوک وایې که چیرې د ضرب د اجزاوو ځایونه یو له بله سره بدل شي د ضرب په حاصل کې څه او څومره بدلون راځي؟

- څوک وایې که چیری د ضرب د یوه جز په ځای بل عدد ولیکل شي. د ضرب په حاصل کې بدلون راځی او که نه؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي په لاندې پوښتنو کې تش ځایونه په مناسب عددونو سره داسې ډک کړي چې د ضرب حاصل یې بدلون ونه کړي.

□ × ۸ = ۵٦ ⟷ ۸ × □ = ۵٦

□ × ٦ = ۵۴ ⟷ ٦ × ۹ =□

**ذهنیت:**

د ضرب د بدلون (تبدیلي) خاصیت په پوهیدو او پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښې کوي.

**ارزښت:**

کله چې زده کوونکي متیقن شي چې د ضرب د اجزاوو د ځایونو په بدلون سره د ضرب په حاصل کې بدلون نه راځی هغوی کولای شي د ریاضي یا فزیک پوښتنو په حل کولو کې د اړتیا په وخت کې  د ضرب د اجزاوو ځایونو ته بدلون ورکړې پوښتنې حل او ساده کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (۵٦) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د یوه عد د ضربول په ۱، ۱۰، ۱۰۰ کې

**یوویشتم لوست، (۵۷ – ۵۸) مخونه**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:**

– زده کوونکي د یوه عدد ضربول په ۱، ۱۰ او ۱۰۰ کې د یوې آسانې طریقې په توګه وپیژني.

– زده کوونکي پوه شي که چیرې د (۱) عدد په هر عدد کې یا هر عدد د یوه په عدد کې ضرب شي. د ضرب حاصل یې په خپله هم هغه عدد دی.

**اصطلاح ګاني:** طریقه، د یوه عدد ضربول، په خپله هم هغه عدد.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، یو دانه یې لرګوټې، د لرګوټو بندلونه، د زباني ضرب جدول او نور محیطی مواد.

**۱– فعالیتها:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو وویشئ د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ په واسطه وکتل شي او زده کوونکي خپل اشتباه ته متوجه کړئ کوشش وکړئ چې صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا شي. که چیرې د پوښتنو په حل کولو کې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په ۴ ټوټو کاغذ باندې ۴ دانې لوبیا داسې چې په هر ټوټې باندې، یوه، یوه دانه لوبیا په میز باندې کښیږدي. بیا دې هم هغه ۴ دانې سره جمع کړي او ۴ واره دې یو ځای په یوې ټوټی کاغذ باندې وښیې. او ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې چې د دې څلور ټوټو کاغذ له پاره لومړۍ د جمعې رابطه او وروسته د ضرب رابطه ولیکئ

**یو ویشتم لوست: د یوه عدد ضربول په ۱ ، ۱۰ او ۱۰۰ کې**

هدف: ۱- زده کوونکي د یوه عدد ضربول په ۱ ، ۱۰ او ۱۰۰ کې د یوې آسانې طریقې په توګه وپیژني.




په لنډ ډول داسې لیکل کیږي.

۱×۵= ۵

کولای شو چې د ضرب عملیه په لاندې ډول هم وښیو.



په پورته شکل کې ۵ دانې مڼې یو وارې وینو نو د ضرب عملیه یې داسې لیکو.

۱×۵= ۵

له پورته دوو عملیو څخه دا نتیجه لاس ته راځي که چیرې (۱) په هر عدد کې او یا هر عدد په (۱) کې ضرب شي د ضرب حاصل یې په خپله هم هغه عدد دی ، نو لیکلی شو چې:

۱ × ۸ = ۸

۸ × ۱ = ۸

۴ × ۱ = ۴

۱ × ۴ = ۴

۶۴ × ۱ = ۶۴

۱ × ۶۴ = ۶۴






۱+ ۱ + ۱ + ۱ = ۴

۴ × ۱ = ۴

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي د مساوي د نښې کیڼې خواته په ۴ ټوټو کاغذ باندې څو دانې لوبیا لیدل کیږي زده کوونکي به ووایې ۴ دانې لوبیا وینو.

بیا دې پوښتنه وکړي د مساوي د نښې ښي خواته په یوې ټوټې کاغذ باندې څو دانې لوبیا لیدل کیږي په دې صورت کې به هم ووایې ۴ دانې لوبیا.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې په خپلو ګروپونو کې د زباني ضرب جدول ته وګورئ لومړی ګروپ دې د کیڼې خوا دویم ستون، دویم ګروپ دې دویمې لیکې (سطر) ته وګوري. د دویم ستون او دویم لیکې عددونه دې هر یو په جلا توګه په خپل ګروپونو کې ولیکي د زباني ضرب له مخې دې د هر عدد د ضرب

په ټولګي کې د زده کوونکو فعالیت

په تشو ځایونوکې د حل شوي مثال په ډول مناسب عددونه ولیکئ!

مثال : ۱×۵=۵

| | | |
|---|---|---|
| ۱ × ۱ = [۱] | ۱ × ۷۱ = [۷۱] | ۱ × ۱۸۲ = [۱۸۲] |
| [۱۲۷۸] × ۱ = ۱۲۷۸ | [۱] × ۲۵۴ = ۲۵۴ | [۱] × ۴۲۰ = ۴۲۰ |
| ۲۷۸۱ × ۱ = [۲۷۸۱] | ۱۹۴ × ۱ = [۱۹۴] | ۳۰۷ × [۱] = ۳۰۷ |
| ۱ × [۲۷۶۴] = ۲۷۶۴ | ۷۰۰۲ × ۱ = [۷۰۰۲] | ۴۰۰۵ × [۱] = ۴۰۰۵ |
| ۶۰۱ × ۱ = [۶۰۱] | ۷۶۴۰ × [۱] = ۷۶۴۰ | [۱] × ۲۶۵ = ۲۶۵ |




زده کوونکي دې د لاندې عددونو د ضرب حاصل په لاس راوړي!

۱×۷۴۰=? ۱۸۴× ۱=? ۶۱× ۱=?




حاصل فهرست کړي. دریم ګروپ دې د کیڼې خوا د لومړي ستون (۱) عدد، د لومړۍ لیکې (سطر) په عددونو کې ضرب کړي او د ضرب حاصل دې ولیکي. او همدارنګه د کیڼې خوا د لومړي ستون ټول عددونه دې د لومړي لیک د (۱) په عدد کې ضرب کړي. او د ضرب حاصل دې ولیکي. په پای کې دې د ګروپ ټوله غړي په ترتیب شوي فهرست باندې فکر وکړي. او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د کار نتیجې د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې د دې فعالیت د سر ته رسولو په جریان کې له ستونزو سره مخامخ کېږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲- مشق او تمرین:**

- ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۵۷) مخ ته را وګرزوي چې د خپل کتاب (۵۷) مخ خلاص کړي او په دقت سره مطالعه کړي. بیا دې د کتاب (۵۸) مخ ته پام وکړي د حل شوي مثال په نظر کې نیولو سره دې د پوښتنو تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شوی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایي چې د ۱ × ۸ او ۸ × ۱ د ضرب حاصل یو له بله څه توپیر (فرق) لري؟
- څوک وایي چې ? = ۶۰۴ × ۱ کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي د لاندې پوښتنو ځوابونه ولیکي

$۱ \times ۶۰۰۰ = ?$ $۱۰۰۱ \times ۱ = ?$

$۶۴ \times ۱ = ?$ $۱ \times ۲۷ = ?$

**ذهنیت:**

د یوه عدد ضربول له (۱) سره په پوهیدو د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د (۱) د ضرب د خاصیت په پوهیدو او همدارنګه د یوه عدد ضربول له (۱) سره، زده کوونکي کولای شي له ځنډه پرته د ضرب حاصل ولیکي او هم د (۱۰)، (۱۰۰) او نورو سره په ضرب کولو کې زیاته مرسته کوي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لاندې عددونو د ضرب حاصل په لاس راوړي.

$۱ \times ۷۴۰ = ?$ $۱۸۴ \times ۱ = ?$

$۶۱ \times ۱ = ?$

# سرليک: د يوه عدد ضربول په ۱، ۱۰، ۱۰۰ کې

**يو ويشتم لوست، (۵۹ – ٦۰) مخونه**

**دويمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يي)**

**هدفونه:**

– زده کوونکي د يوه عدد ضربول په ۱، ۱۰ او ۱۰۰ کې د يوې آسانې طريقې په توګه وپيژني.

– زده کوونکي پوه شي که چيرې د (۱) عدد په هر عدد کې يا هر عدد د يوه په عدد کې ضرب شي. د ضرب حاصل يې په خپله هم هغه عدد دی.

**اصطلاح ګانې:** ضرب، عدد، طريقه، په خپله عدد.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټې، بنډلونه، کارتونه، د ۱۰ او ۱۰۰ افغانيزو بانک نوټونه او نور محيطي مواد.

**۱– فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په درې ګروپونو وويشي د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي کومې اشتباه ګانې چې زده کوونکو کړې دي پرتخته دې وليکل شي بيا دې د ګروپ د غړو په واسطه صحيح شي. پرته له هغه ښاغلی ښوونکی دې په تخته باندې تشريح کړي.

– ښاغلی ښوونکی د دې له پاره چې پوه شوی ياست چې زده کوونکو کورنۍ دنده له يوه بل څخه کاپي کړې نه وي د کورنۍ دندې په برخه کې دې له څو زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي چې هغوی يې په تخته باندې تشريح او حل کړي.

مثلاً: زلمي ته دې ووايي چې خپله کورنۍ دنده ماته راکړه او ته د تــولګې مخې ته لاړ شــه د ? = ۷۴۰ × ۱ او ? = ۱۸۴ × ۱ د پوښتنو د ضرب حاصل وليکه.

– ښاغلی ښوونکی دې لاندې شکل د هغه د رياضي له افادې سره پر تختې وليکي.

**د ۱۰ ضربول په يوه عدد کې:**

۱ مثال:

۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰ =۵۰



تاسو پوهيږئ چې:

۱۰ پنځه وارې جمع شوی دئ.

۱۰×۵ =۵۰

۲ مثال: ۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰+۱۰=۷۰

۱۰ اووه وارې جمع شوی دئ.

۱۰×۷=۷۰

له پورته شکلونو او عمليو څخه معلوميږي که چيرې ۱۰ په هر عدد کې ضرب شي او يا هر عدد په ۱۰ کې ضرب شي، لومړی يو په هم هغه عدد کې ضربوو بيا د ضرب د حاصل ښي خواته يو صفر ليکو يا په لنډه توګه د هم هغه عدد ښي خواته يو صفر ږدو او د ضرب د حاصل په ځای کې يې ليکو.

لکه:

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰×۷۶۸=۷۶۸۰ | ۱۰×۱۳۴=۱۳۴۰ | ۱۰×۹=۹۰ |
| ۲۳۵۶×۱۰=۲۳۵۶۰ | ۷۲۱×۱۰=۷۲۱۰ | ۸×۱۰=۸۰ |




لاندې جدول بشپړ کړئ

| × | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ۶ | ۷ | ۸ | ۹ |
| ۱۰ | ۱۰ | ۲۰ | ۳۰ | ۴۰ | ۵۰ | ۶۰ | ۷۰ | ۸۰ | ۹۰ |




| | | |

۱ + ۱ + ۱ + ۱ = ۴ × ۱ = ۴

۱۰ + ۱۰ + ۱۰ + ۱۰ = ۴ × ۱۰ = ۴۰

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدايت ورکړئ چې د درې د مخ شکل د هغې له افادې سره په نظر کې ونيسي د يو دانه يې لرګوټو، او د لرګوټو د لسی له بنډلونو څخه کار واخلي، ۵ يو دانه يې او ۵ بنډله د لسيو په خپل ګروپونو کې په ميز باندې کښيږدي او د هغو له مخې د يو دانه يې او لسيو د ضرب حاصل وليکي. زده کوونکي بايد دا لاندې افادې وليکي.

۱ + ۱ + ۱ + ۱ + ۱ = ۵ × ۱ = ۵

۱۰ + ۱۰ + ۱۰ + ۱۰ + ۱۰ = ۵ × ۱۰ = ۵۰

– ښاغلی ښوونکی د ګروپونو د کارونو مراقبت کوي. چې زده کوونکي د پورته مثال په ډول افاده وليکي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته وواياست د خپلې ليکلې افادې په برخه کې په ګروپونو کې بحث او خبرې

اترې وکړئ. کوم توپير چې د ضرب په حاصل کې ليدل کيږي هغه وښياست. په دې صورت کې بايد زده کوونکي دې نتيجې ته رسيدلي وي چې:

٥ × ١ = ٥

٥ × ١٠ = ٥٠

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست د خپل کتاب (٥٩) مخ خلاص کړئ د یوه عدد ضربول په ١٠ کې په دقت سره د اړوندو شکلونو ته خپل پام ور وګرزوئ.

– ښاغلی ښوونکی! بیا زده کوونکو ته هدایت ورکړئ اوس د خپل کتاب (٦٠) مخ ته وګورئ په هغه کې د عددونو ضربول له ١٠ سره د اړوندو شکلو په شمول د پام ور وګرزوئ.

**٢– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (٦٠) مخ ته را وګرزوئ هغوی ته ووایاست چې د (٦٠) مخ پوښتنې په خپل ګروپونو کې حل کړئ. که چیرې په حل کولو کې ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

**٣– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایي یو چې په یو عدد کې ضرب شي د ضرب حاصل یې کوم عدد دئ؟

– څوک وایي ٤×١٠ څه مفهوم لري؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل پیدا کړي.

٦٤×١٠=؟ ، ٣٦٢ × ١٠ = ؟ ، ٣٦٢ × ١٠٠ = ؟

٢٨×١٠٠=؟ ، ٤٧١×١= ؟ ، ٣٦٢ × ١ = ؟

**د ١٠٠ ضربول په يوه عدد کې:**

١ مثال:



١٠٠ + ١٠٠ = ٢٠٠

دوه ځلي ١٠٠ ليدل کيږي.

٢ مثال:

١٠٠ ×٢ =٢٠٠



١٠٠+١٠٠+١٠٠+١٠٠+١٠٠=٥٠٠

١٠٠×٥=٥٠٠

د پورتنيو عمليو او شکلونو څخه نتيجه لاس ته را ځي که چيرې ١٠٠ په يوه عدد کې يا يو عدد په ١٠٠ کې ضرب شي کولی شو عدد د ضرب د حاصل په ځای کې وليکو او ښي خواته يې دوه صفرونه کښيږدو.




زده کوونکي دې لاندې پوښتنې حل کړي:

١٠٠×٣ ١٠٠×٤ ١٠٠×٥




**ذهنیت:**

د یوه عدد ضرب کول په ١، ١٠، ١٠٠ کې د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې عددونو له ضربولو څخه په ورځني ژوند کې کار اخلي هغوی له ځنډه پرته په ١، ١٠ او ١٠٠ کې د ضرب حاصل پیدا کولای شي.

**٤– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (٦٠) مخ کورنی دنده د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د یوه عدد ضربول په ۱، ۱۰، ۱۰۰ کې

**یو ویشتم لوست، (۶۱ – ۶۲) مخونه**

**دریمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**




لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکئ! د حل شوي مثال په ډول یې حل او تش ځایونه یې ډک کړئ!

۱۰۰×۱۰=۱۰۰۰

۱۰۰×۲=۲۰۰

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱۱۰۰ | = | ۱۱ | × | ۱۰۰ |
| ۲۵۰۰ | = | ۲۵ | × | ۱۰۰ |
| ۲۰۰۰ | = | ۲۰ | × | ۱۰ |
| ۲۰۰۰ | = | ۱۰۰ | × | ۲۰ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۴۰۰ | = | ۲ | × | ۱۰۰ |
| ۶۰۰ | = | ۶ | × | ۱۰۰ |
| ۹۰۰ | = | ۹ | × | ۱۰۰ |
| ۹۰۰ | = | ۱۰۰ | × | ۹ |




که چېرې په یوه کارتن کې ۱۰۰ پاکټه چاکلېټ وي معلوم یې کړئ چې په ۷ کارتنوکې څو پاکټه چاکلېټونه دي؟

۶۱

**هدفونه:**

– زده کوونکي د یوه عدد ضربول په ۱، ۱۰ او ۱۰۰ کې د یوې آسانې طریقې په توګه وپېژني.

– زده کوونکی پوه شي که چیرې د (۱) عدد په هر عدد کې یا هر عدد د یوه په عدد کې ضرب شي. د ضرب حاصل یې په خپله هم هغه عدد دئ.

**اصطلاح ګانې:** ضرب، طریقه، په خپله عدد.

**د لوست مرستندوی مواد:** د عددونو کارتونه، د ۱۰ او ۱۰۰ افغانیزو بانک نوټونه.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو کورنۍ دنده وګوري هغو زده کوونکو چې کورنۍ دنده سرته نه ده رسولې نومونه یې واخلئ او په بله ورځ د هغو کورنۍ دنده بیا وګورئ. او اشتباه ګانې په تخته باندې ولیکئ. د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په تخته باندې تشریح کړي بیا دې زده کوونکي په درې ګروپونو وویشل شي.

لومړی ګروپ: دې د ۳۲×۱۰۰=? او ۹۶×۱۰=? پوښتنې حل کړي.

دویم ګروپ: دې د ۳۸×۱۰۰=? او ۸۵×۱۰۰=? پوښتنې حل کړي.

دریم ګروپ: دې د ۲۱۶×۱۰=? او ۷۴×۱۰۰=? پوښتنې حل کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې چې لومړی، دویم او دریم ګروپونه د مخکنۍ حل کړې پوښتنو د ضرب د اجزاؤ ځایونه یو له بله سره بدل کړي او د ضرب حاصل دې پیدا کړي.

– ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ څوک د تاسو ۲ لس ګونې افغانۍ لري او د هغو مجموعه په ضرب کې څرنګه پیدا کولای شي. ښاغلی ښوونکی دې دوه لس ګونې زده کوونکو ته وښیې او همدارنګه د امکان په صورت کې ۴ دانه سل ګونې دې زده کوونکو ته وښیې د ضرب په شکل دې ولیکي او د ضرب حاصل دې پیدا کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدایت ورکړئ چې د خپل د کتاب (۶۱) مخ خلاص کړئ. پوښتنې خپلو کتابچو ته نقل او تش ځایونه د کتاب له هدایت سره سم په مناسب عددونو سره ډک کړئ. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته ورسره وکړئ.

**۲– مشق آو تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۶۲) مخ

ته را وګرزوي او هغو ته وواياست چې د کتاب (٦٢) مخ خلاص کړئ د هغه مخ د مشق او تمرين پوښتنې حل کړئ ښاغلی ښوونکی د کار د جريان مراقبت وکړئ.

**۳– آرزونه:**

د دي له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وايي ۸ سلګونې څو افغانی کيږي او د ضرب په شکل يې پيدا کړئ؟

– څوک وايي چې ۲۰ لس ګونې څو افغانی کيږي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د لاندې پوښتنو د ضرب حاصل په لاس راوړي.

۲۷۸×۱۰۰=? ، ۱٦۸×۱۰=? ، ۹۵×۱۰۰=?

۲۷۸×۱۰=? ، ۲٦۵×۱۰۰=? ، ۸٦×۱۰=?

۲۷۸×۱=? ، ۲٦۵×۱? ، ۵۰۰×۱=?

**ذهنيت:**

د ۱۰ او ۱۰۰ سره د عددونو د ضرب په پوهيدو د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې ډول له ضربولو څخه په ورځني ژوند کې کار اخلي هغوی د هغو څو شيانو قيمت چې د هر يوه قيمت ۱۰، ۱۰۰ او يوه افغاني وي د ټولو قيمت په ډيره آسانه سره پيدا کولای شي.

**پوښتنې**

۱ – لاندې عددونه يوله بله سره ضرب کړئ!

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰۰ | ۱۰ | ۱۰۰ |
| ۸٦ × | ۸۲ × | ۸۴ × |
| ۸٦۰۰ | ۸۲۰ | ۸۴۰۰ |
| ۱۰۰ | ۱۰۰ | ۱۰۰ |
| ۲۴۰ × | ۸۹۰ × | ۷٦۰ × |
| ۲۴۰۰۰ | ۸۹۰۰۰ | ۷٦۰۰۰ |
| ٦۰۴ | ۱۰ | ۷۴۰ |
| ۱۰ × | ٦۰۴ × | ۱۰۰ × |
| ٦۰۴۰ | ٦۰۴۰ | ۷۴۰۰۰ |

۲ – يوه هتۍوال ۱۰۰ متره ټوکر وپلورل که چيرې د هغه د يوه متر ټوکر بيه ۱۸ افغانۍ وي، معلوم کړئ چې څو افغانۍ يې په لاس راوړې دي.

۳ – که چېرې يوې کورنۍ په يوه مياشت کې د ۱۰۰ افغانيو بوره رانيولې وي معلوم کړئ چې نوموړې کورنۍ به، په ۱۲ مياشتوکې دڅو افغانيو بوره را ونيسي؟

کورنی دنده

د ۷۰، ۸۴، ۹۳، ۹۰ او ۳۵ عددونه د (۱۰) او (۱۰۰) په عدد ونوکې ضرب کړئ د ۱۰ او ۱۰۰ د ضرب حاصل يې يوله بله سره پر تله

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۵ | ۹۰ | ۹۳ | ۸۴ | ۷۰ | ۳۵ | ۹۰ | ۸۴ | ۷ |
| ۱۰۰ × | ۱۰۰ × | ۱۰۰ × | ۱۰۰ × | ۱۰۰ × | ۱۰ × | ۱۰ × | ۱۰ × | ۱۰ × |
| ۳۵۰۰ | ۹۰۰۰ | ۹۳۰۰ | ۸۴۰۰ | ۷۰۰۰ | ۳۰۰ | ۹۰۰ | ۸۴۰ | ۷۰۰ |

٦۲

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (٦١، ٦٢) مخونو کورنۍ پوښتنې د کتاب له هدايت سره سم حل کړي او له ځانو سره دې راوړي.

## سرلیک: د اوږدوالي د اندازه کولو واحد (متر)

**دوه ویشتم لوست، (٦٣ – ٦٤) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي متر د اوږدوالي د واحد په توګه وپیژني او له هغه څخه په ورځني ژوند کې کار واخیستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** واحد، اندازه کول، اوږدوالی، متر.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، تار، لښته او نور د چاپیریال ساده مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده وګورئ او یو زده کوونکی د ټولګی مخې ته را وغواړئ چې د (٦٢) مخ کورنۍ دنده په تخته باندې ولیکي. او د خپل کار څرنګوالی نورو ټولګیوالو ته تشریح کړي. که چیرې ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی د دې له پاره چې زده کوونکي په ځیر سره نوی لوست ته پام وکړي. او هغه هدف ته اړتیا پیدا کړي لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.

– څوک ویلای شي چې معماران د کور حویلي او نورو ځایونو اوږدوالي د څه شي په واسطه اندازه کوي.

– څوک ویلای شي چې تږکر پلورونکي، ټوکر د څه شي په واسطه اندازه کوي او پلوري.

– څوک ویلای شي چې ترکاڼان د وره او کړکۍ جګوالی د کړکۍ اوږدوالی او سور د څه شئ په واسطه اندازه کوي او بیا د هغو د اندازو سره سم دروازې او کړکۍ جوړوي.

– ښاغلی ښوونکی د یوه متر په اندازه سره یو خط په تخته باندې وکاږئ. او زده کوونکو ته ووایي چې په ګروپونو باندې تقسیم شي. هغه مواد چې له تاسو سره شته دي د هغو په واسطه د رسم شوی یوه متر خط په نظر کې نیولو سره په تخمیني توګه له هغو څخه د خط په اندازه جلا کړي. ښاغلی ښوونکی دې بیا له هر ګروپ څخه یوه،

# اووم فصل
# داندازه کولو واحدات

**دوه ویشتم لوست: د اوږدوالي د اندازه کولو واحد (متر)**

هدف: زده کوونکي متر داوږدوالي د واحد په توګه وپیژني او له هغه څخه په ورځني ژوند کې کار واخستلی شي.

فهیمې خپلې خورته ولیکل چې زه د کړکۍ یوې پردې ته اړتیا لرم مهرباني وکړه داسې یوه پرده راولیږه چې اوږدوالي یې ۱۰ لوېشتې او سور یې ۱۲ لوېشتې وي. د فهیمې خور ښارته ولاړه د خپلې خور له هدایت سره سم یې ټوکر راونیو پرده یې ور څخه و ګنډله او ور ویې لیږله. کله چې فهیمې پرده په کړکۍ باندې را وځړوله ډېره خواشینې شوه. د هغې د خواشیني توب په علت پوهیږئ څه دی؟
څرنګه چې لویشتې یوله بله سره توپیر لري او پرده یې د اړتیا سره سمه نه وه، لنډه شوه نو تاسو وواياست څه باید وکړو.



څرنګه چې د نړۍ ټول خلك د دغه ډول ستونزو سره مخامخ اولاس په ګرېوان وو، نو د نړۍ پوهانو او علماؤ د اوږدوالي واحد چې متر بلل کیږي ومنل چې نن د اوږدوالي له همدې واحدڅخه کار اخستل کیږي.








تن ته اجازه ورکړي چې لښته د تختې په مخ په رسم شوي خط باندې کښیږدي او په دقیق توګه د یوه متر په اندازه لښته جلا کړي. او خپل ګروپونو ته راشي. هر یو زده کوونکي د خپل ګروپ په مخ کې د تخمیني جلا شوي لښتې سره پرتله کړي. د هر یوه زده کوونکي تخمیني متر چې حقیقت ته نږدې وي په ترتیب سره دې پرتختې ولیکل شي.

– ښاغلی ښوونکی بیا په ترتیب سره هر زده کوونکی ته متر ورکړئ او ورته وواياست د دې متر په واسطه خپل د ټولګي اوږدوالی او بر اندازه کړئ او په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

– ښاغلی ښوونکی! دې د کارکولو جریان ته دقیق شي ودې ګوري چې کوم یو زده کوونکی په دقیق توګه کار کوي. همدارنګه د امکان په صورت کې د ښوونځي واټ (میدان) دې زده کوونکو ته وویشل شي او هر ګروپ ته دې وویل شي چې هر ګروپ دې خپله برخه اندازه کړي

او په کتابچو کې دې ولیکي. که چیرې یو څه له متر څخه زیات او یا لږ شي یعنی متر بشپړ نه کړي د لږ یا زیات په نامه دې یاد شي.

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۶۳) مخ ته را وګرزوئ چې د کتاب مخ خلاص کړي او په دقیق ډول نوموړی مخ په ګروپونو کې مطالعه کړي. ترڅو لا ښه د متر په ارزښت او اړتیا پوه شي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکی دې د کتاب (۶۴) مخ خلاص کړي بیا دې (۱) او (۲) ګڼې پوښتنې لومړی ګروپ، (۳ او ۴) ګڼې پوښتنې دویم ګروپ او همدارنګه (۵ او ۶) ګڼې پوښتنې دې دریم ګروپ حل کړي. له حل کولو وروسته دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن خپل د ګروپ کار و نورو ګروپونو ته تشریح کړي. که چیرې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

فعالیتونه: ښوونکې دې دوه تنه دتولګی مخې ته را وغواړی او دیو بل په واسطه دې دهغوی تدونه اندازه کړي چې له یوه متر څخه کم دی او که زیات؟




۱- د خپل تولګي اوږدوالی او سور د متر په واسطه اندازه کړئ چې تا سو په خپله جوړ کړئ دی؟
ځواب: د زده کوونکو کار دی.

۲- ستاسو په ګروپ کې د کوم یوه غړي د قد اوږدوالي له یوه متر څخه زیات دی؟
ځواب: د زده کوونکو کار دی.

۳- ستاسو په ګروپ کې د کوم یوه غړي د قد اوږدوالی له یوه متر څخه لږدی؟

۴- ستاسو د تولګي اوږدوالی د هغه له سور څخه څومره زیات دی؟

۵- ستاسو د میز اوږدوالی له یوه متر څخه زیات دی او که لږ؟
ځواب: د زده کوونکو کار دی.

۶- ستاسو د میز سور له یوه متر څخه څولو ښتې لږ دی؟
ځواب: د زده کوونکو کار دی.




د خپل کور د یوې کوټې اوږدوالی او سور د متر په واسطه اندازه کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.




**ارزښت:**

د متر پیژندل او په ورځني ژوند کې له متر څخه کار اخیستل ډیر ارزښت لري هغوی کولای شي د شیانو اوږدوالی په دقیق ډول پیدا کړي او د اړتیا په وخت کې متر وکاروي.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ټولګي د وره بر اندازه کوي او وایي چې له متر څخه څومره زیات او یا لږ دی؟

– څوک د یوه متر په اندازه لښته ښیي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي متر وپیژني او د شیانو اوږدوالي د متر په واسطه اندازه کړي.

– زده کوونکي وکړای شي د ټولګي اوږدوالی، د ټولګي بر، د تختې اوږدوالی او بر د متر په واسطه اندازه کړي.

**ذهنیت:**

– د متر په پیژندلو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۶۴) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي او له ځانو سره دې راوړي.

# سرليک: سانتي متر

**درويشتم لوست، (٦٥ – ٦٦) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي سانتي متر، د متر د جزء (د يوه متر د سلمي برخې) په توګه وپيژني او په ورځني ژوند کې له هغه ځخه کار واخلي.

**اصطلاح ګاني:** سلمه، سانتي متر، جز.

**د لوست مرستندوی مواد:** لښته، د کاغذ تريشه، خط کش، متر.

**درويشتم لوست: سانتي متر**

هدف: زده‌کوونکی سانتی متر د متر د جزء (د يوه متر دسلمې برخې) په توګه وپيژني او په ورځني ژوند کې له هغه ځخه کار واخلي.

تاسو به ليدلي وي چې تهوکر پلورونکي د تهوکرد رانيولو او پلورلو له پاره ديوي فلزي تهوتې ځخه کار اخلي تر کاڼان، معماران او مهندسان د شيانو د اوږد والي د اندازه کولو له پاره د متر له فيتو ځخه کار اخلي ښاغلی ښوونکی دې د تهولګي د ليك دړې په مخ باندې ديوه متر په اندازه يو خط رسم کړي او د زده‌کوونکو پام دې ورته را وګرځوي. بيادې زده‌کوونکو ته دنده ورکړي هغه متر چې له لرګي، لښتې يا تار ځخه يې جوړکړی دی. ځرنګه ورځخه کار اخلي؟ تر ځو د تهولګي او ميز اوږدوالی او سور اندازه کړي په ځينو حالاتو کې به ووينئ چې د ميز اوږدوالی او سور له متر ځخه زيات يا لږ دی. په دې صورت کې اړتيا پيداکيږي چې د اوږدوالي کوچنی واحد هم وپيژنو نو که چېرې يو متر په سلو مساوي برخو جلا کړو هرې برخې ته يې يو سانتي متر وايي. تاسو کولی شئ سانتي متر د خپل خط کش په ليدو سره وپيژنئ. د لښتې، کاغذ او د لرګوټو ځخه ديوه سانتي متر په اندازه جلاء کړئ، د کاغذ د پاڼې په مخ باندې د يوه سانتي متر په اندازه يې رسم کړی.

۱متر = ۱۰۰ سانتي متره



٦٥

**۱- فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده دې وکتل شي هغو زده کوونکو چې پوښتنې صحيح حل کړې دي په ښو او تشويق کوونکو کلمو سره يې تشويق کړئ. او هغو چې اشتباه کړې ده د هغو د اشتباه ګانو صحيح ځوابونه دې په تخته باندې تشريح شي. بيا دې له زده کوونکو ځخه لاندې پوښتنې وکړې:

– که چيرې ستاسو د ميز اوږدوالی له متر ځخه زيات وي د هغه زياتوالی د څه شي په واسطه اندازه کوئ؟

– که چيرې ستاسو د ميز بر له متر ځخه کم وي ويلای شي چې ځومره کم دی؟

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی په درې ګروپونو باندې وويشئ او ورته ووایاست چې خپل خط کش ته په ډير دقت سره پام وکړي. د خط کش په اوږدوالی باندې د هغو عددونو له مخې چې ورباندې ليکل شوې دي پوه شي چې ځومره اوږدوالی لري. او هم په خط کش باندې د دوو عددونو تر منځ فاصله په نظر کې ونيسي. چې دا فاصلې يو له بل سره مساوی دي او که نه؟

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست دا هره يوه فاصله چې د دوو عددونو په منځ کې قرار لري يو سانتي متر ده اوس تاسو د (۱) سانتي متر، ۵ سانتي مترو په اندازه خطونه د کاغذ په مخ باندې وکاږئ. او همدارنګه د لښتې يا د کاغذ د تريشې ځخه د يو سانتي متر په اندازه جلا کړئ او په خپل ميز باندې يې کېښېږدئ.

– ښاغلی ښوونکی دې د ټولو ګروپونو د کار ځخه ليدنه وکړي. که چيری زده کوونکي ستونزې ولرې له هغو سره مرسته او لارښوونه ورته وکړئ. هغو زده کوونکو چې په عملی توګه کار صحيح سر ته رسولی دی تشويق دې شي هغه زده کوونکي چې ستونزې لري لارښوونه دې ورته وشي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست. د خپل کتاب (٦٥) مخ خلاص کړئ او مطالعه يې کړئ. که چيرې کومه پوښتنه لرئ، پوښتنه وکړئ. د پوښتنې کولو په صورت کې ځواب ورکړئ.

**۲- مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (٦٦) مخ ته را وګرزوئ. د دې مخ (۱) او (۲) ګڼې پوښتنې دې په ګروپونو کې حل کړي. بيا دې (۳) ګڼه پوښتنه لومړی

ګروپ ته، (۴) ګڼه پوښتنه دې دويم ګروپ ته او (۵) ګڼه پوښتنه دې دريم ګروپ ته ورکړي چې حل يې کړي وروسته له هر ګروپ څخه دې يو، يو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي که چيرې له ستونزو سره مخامخ کيږي مرسته او لارښوونه دې وشي.

**۳- آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک د خپل ميز اوږدوالی ويلای شي؟

– څوک د دې ____________ خط اوږدوالی د خط کش په واسطه ښيي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي پوه شي چې يو متر ۱۰۰ سانتي متره کيږي او د سانتي متر په واسطه د ټوټه خطونو اوږدوالی معلوم کړای شي.

– زده کوونکي د ۳ سانتي مترو، ۷ سانتي مترو او ۹ سانتي مترو په اوږدوالی سره ټوټه خطونه رسم کړای شي.

**ذهنيت:**

د ټوټه خطونو په رسم کولو او اندازه کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د ټوټه خطونو اندازه کول يا د يوې معلومې اندازې لپاره د ټوټه خطونو رسم کول د زده کوونکو له پاره ډېر ارزښت لري. هغوی د نورو لوستلو لپاره چمتو کيږي او داسې اندازه کول مرسته ورسره کوي چې د ځان او نورو ستونزې حل کړي.

مثلاً: د شيانو او جنسونو لکه پرې، د بخارۍ نل، د پردو رادونه، د غولي فرش په پلورلو او رانيولو کې له ستونزو سره نه مخامخ کيږي.

**۴- کورنۍ دنده:**

پوښتنې:

۱- ستاسو خط کش څو سانتي متره دی؟

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵

۲- ۱۰۰ سانتي متره څو متره کيږي؟

۳- د خپل کتاب اوږدوالی او سور اندازه کړئ؟

۴- که چېري ستاسو د مېز اوږدوالی له يوه متر څخه زيات او له دو و مترو څخه لږ وي د اندازه کولو د کوم واحد څخه کار اخلئ؟

۵- د ا ب ، ب ج ، او ا ج د قطعه خطونو اوږدوالی اندازه کړئ و ليکئ چې هر يو څو سانتي متره دی؟

ا ب ج

کورنۍ دنده

ځواب:

۳ سانتی متر = ا – ب

۲ سانتی متر = ب – ج

۵ سانتی متر = ا – ج

زده کوونکي دې د ۵ سانتيمترو، ۱۰ سانتيمترو او ۲۰ سانتيمترو په اندازه قطعه خطونه رسم کړي.

ا ب

۵ سانتی متر

ج د

۱۰ سانتی متر

هـ و

۲۰ سانتی متر

۶۶

زده کوونکي دې د (٦٦) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدايت سره سم حل کړي او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: دیسې متر

**څلور ویشتم لوست، (٦٧) مخ**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکولی شي دیسی متر د متر د جزء په توګه وپیژني او د اړتیا په وخت کې کار ورڅخه واخلي.

**اصطلاح ګاني:** جز، پیژندنه، دیسی متر، د متر جزء.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، کاغذ، لښته، متر، تار.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو باندې وویشل شي. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي او اشتباه ګاني دې په تخته باندې ولیکي. د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د اړوند ګروپ په واسطه پیدا کړئ له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه په تخته باندې تشریح کړي. هغو زده کوونکو چې پوښتنې صحیح حل کړي نه دي یادونه دې ورته وکړي. چې په راتلونکي کې خپل لوستونو ته پام ونیسي. بیا هم که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته دې ورسره وشي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو ګروپونو کې د ۱۰ سانتي مترو په اندازه یو خط رسم کړي بیا دې هر زده کوونکی له لښتې یا تار یا نورو محیطي موادو څخه د هم هغه لسو سانتي مترو د اوږدوالي په اندازې سره جلا کړي. ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو د کار کولو د جریان لیدنه وکړي. چې هر زده کوونکی د هم هغو لسو سانتي مترو د اوږدوالي په اندازه سره لښته یا تار او یا نور مواد جلا کوي او له ځان سره لري او که نه؟

– بیا دې ښاغلی ښوونکی پوښتنه وکړي چې دا لس سانتي متر د څه شي په نامه یادیږي. ښايي چې زده کوونکي ځواب ونشي ویلای. او چوپ پاتې شي. نو ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي چې دا لس سانتي متر د یوه دیسی متر په نامه یادیږي. یا یو دیسې متر ورته وايي.

**څلور و یشتم لوست : د یسی متر**

**هدف:** زده کوونکی وکولی شي د یسي متر د متر د جزء په توګه وپیژنی او د اړتیا په وخت کې کار ور څخه واخلی.

**د زده کوونکو فعالیت په ټولګی کې**

هغه خط کش چې تا سو یې له خپل ځان سره لری کار ورڅخه واخلئ او لاندې فعالیتونه سرته ورسوی.

۱ـ ستاسو خط کش څو سانتیمتره دئ؟ ځواب: ۱۵ سانتي متره دی.

۲ـ د ۱۰ سانتیمترو په اندازه یو توته خط رسم کړئ.

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ٦ ۷ ۸ ۹ ۱۰

۳ـ د یوې لښتې یاد کاغذ له ترېشې څخه د ۱۰ سانتیمترو په اندازه جلا کړئ. ځواب: د زده کوونکو کار دی.

۴ـ د جلا شوي لښتې یا دکاغذ د ترېشې په واسطه یو متر واتن اندازه کړئ. ځواب: د زده کوونکو کار دی.

۵ـ و وایاست ستاسو د جلا شوي برخې څو لښتې یو متر کیږي؟ ځواب: ۱۰ لښتې یو متر کیږي.

هغو زده کوونکو چې په دقیق توګه یې کار سرته رسولی دی ښايي ووايې چې ۱۰ لښتې یا ۱۰ ترېشی یو متر کیږي هغه دې تشویق شي او پوښتنې دې ور څخه وشي.

په تاسو کې څوک ویلی شي چې دغه د ۱۰ سانتیمتر و لښته په بل څه نامه یادیږي؟

باید وپوهیږي چی دا د ۱۰ سانتیمتر و واټن یو دیسي متر بلل کیږي.

نو ویلی شو:

۱۰ دیسي متره = یو متر ۱۰ سانتې متره = ۱ دیسې متر



**پوښتنې:**

۱ – ۴ متره څو دیسې متره کیږي؟ ځواب: ۴۰ دیسی متره کیږي.

۲ – د کریم د تنې اوږدوالي ۱۳۰ سانتي متره دی د کریم دتنې اوږدوالی په دیسي متر سره معلوم کړئ؟

ځواب: ۱۳ دیسی متره دئ

۱۳۰ ÷ ۱۰ = ۱۳ (۱۳۰ − ۱۰ = ۳۰، ۳۰ − ۳۰ = ۰۰)

۳ – و وایاست چې ۸۵۰ سانتي متره څو دیسي متره او څوسانتي متره کیږي؟

۸۵۰ ÷ ۱۰ = ۸۵ (۸۵۰ − ۸۰ = ۵۰، ۵۰ − ۵۰ = ۰۰)

ځواب: ۸۵۰ سانتی متره مساوی له ۸۵ دیسی متر سره دئ.

**کورنی دنده**

د یوه دیسي متر جلا شوي لښتې څخه کار واخلئ د خپل کور د یوه وره سور اندازه کړئ ویې لیکئ چې څو دیسي متره او څو سانتي متره کیږي؟

ځواب: د زده کوونکو کار دی.




– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د همدې یو دیسی متر په واسطه چې دوی په خپله جوړ کړی دی. د یوه متر اوږدوالی اندازه کړي. او ووايي چې څو دیسی متره کیږي.

– هغو زده کوونکو چې په دقیقه توګه کار کړی دی ښايي چې په یوه غږ سره ووايي چې ۱۰ دیسې متره یو متر او یا ۱۰۰ سانتی متره کیږي. که چیرې زده کوونکي یې ونشي ویلای ښاغلی ښوونکي دې ورته ووايي د متر اوږدوالي د دیسې متر په واسطه وښيي بیا دې ووايي یو متر لس دیسې متره کیږي ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې د کتاب (٦٧) مخ خلاص کړي. د زده کوونکو فعالیت دې په ټولګی کې په ډیر دقت سره مطالعه کړي. او په فعالیتونو کې دې په ګروپي ډول کار وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

– زده کوونکي دې (۱، ۲، ۳) ګڼې پوښتنې په ګروپونو کې حل کړي له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د ټولګی

مخې ته راشي په وار سره دې يوه، يوه پوښتنه پرتختې حل کړي که چيرې په حل کولو کې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳- آرزونه:**

- د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شوي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړئ:

**پوهه:**

- څوک وايې چې ۳۵ سانتې متره څو ديسې متره او څو سانتې متره کيږي؟
- څوک وايې چې ۸۰ سانتی متره څو ديسې متره کيږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي بايد وکړای شي چې لاندې پوښتنې حل کړي:

- ۱۰ سانتي متره په ديسی متره واړوي چې څو ديسی متره کيږي؟
- ۲۰ ديسی متره په متر واړوي چې څو متره کيږي؟
- يو متر فاصله په ديسي متر سره وليکي.

**ذهنيت:**

د ديسی متر، سانتر متر په پوهيدو او پيژندلو سره د زده کوونکي ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د سانتی متر او ديسي متر په پوهيدو سره زده کوونکي کولای شي په ورځني ژوند کې کار ورڅخه واخلي او د اړتيا په وخت کې فاصلي په سانتي متر يا ديسي متر سره هم اندازه کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (٦٧) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدايت سره سم حل کړي.

## سرلیک: ملی متر

**پنځه ویشتم لوست، (٦٨ – ٦٩) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی وکولئ شي ملی متر وپیژني او له اوږدوالی څخه د اندازه کولو د کوچنی واحد په توګه کار واخلي.
**اصطلاح ګاني:** ملی متر، کوچنی واحد.
**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، کاغذ.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دري ګروپونو وويشئ. د زده کوونکو کورنی دنده وګورئ، اشتباه ګاني په تخته باندې وليکئ. بيا دې صحيح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پيدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحيح ځوابونه په تخته باندې تشريح کړي.
– ښاغلی ښوونکی! له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وشي:
– کوچنی فاصلي (که چيری له يوی سانتر متر څخه لږ وي) د څه شي په واسطه کيږي؟
– خپل خط کش ته په دقت سره وګورئ وواياست چې په يوه سانتی متر کې څو کوچنی خطونه رسم شوي دي؟ هغوی خطونه شميری او ځواب وايې لس کوچنی خطونه دي.
– پوهيږئ دا کوچنی فاصلی چې د دوو کوچنيو خطونو په منځ کې قرار لري د څه شئ په نامه يادیږي؟
– ښاغلی ښوونکی! کله چې له زده کوونکو څخه صحيح ځوابونه واوريدل شي که چيری کوم زده کوونکی مخکنی معلومات ولري او ووايې ملی متر دئ. ښه به وي ځواب ته يې هو وواياست او تکرار يې کړئ او نورو زده کوونکو ته وواياست ټولګيوال مو ډير ښه ځواب وويل تاسو هم له دې وروسته همدې کوچنی فاصلي ته ملی متر وواياست. زده کوونکو ته وواياست که چيری يو سانتی متر په لسو مساوي برخو وويشو هره برخه يې يو ملی متر دئ.

**پنځه و يشتم لوست: د ملی متر**

هدف: زده کوونکي کولی شي ملی متر و پيژني او د اوږدوالي اندازه کولو د کوچني واحد په توګه کار ور څخه واخلي.

د زده کوونکو فعاليت په ټولګی کي

لاندې شکل ته پاملرنه وکړئ.



دا شکل د يوه سانتيمتر واټن (فاصله) راښيي چې په لسو مساوي برخو ويشل شوئ ده.
هرې برخې ته يې يو ملي متر وايې په دې صورت کې.
۱۰ ملي متر = ۱ سانتي متر کيږي
۱- مثال: ۲ سانتي متره څو ملي متره کيږي ؟
حل: پوهيږو چې يو سانتي متر مساوي له لسو ملي متره سره دئ نو ۲ سانتي متره مساوي کيږي له.
۲۰ ملي متر = ۱۰ ملي متر + ۱۰ ملي متر
يا ۲۰ ملي متر = ۲×۱۰ ملي متر
۲- مثال: غواړو چې د لاندې توته خط اوږ دوالې د خط کش په واسطه اندازه کړو.




د خط کش صفرې يا ټکی د (ا) له ټکی سره سم ايږ دوليدل کيږی چې د هغه د (ب) ټکی د ۵ سانتيمتر و څخه ۵ ملي متره زيات ده. نو وايو چې ددې توته خط اوږ دوالی ۵ سانتيمتره او ۵ ملي متره دئ.




– ښاغل ښوونکی زده کوونکو ته وواياست چې د خپل کتاب (٦٨) مخ خلاص کړئ. د نوموړی مخ فعاليت په خپل ګروپونو کې په ډير دقت سره مطالعه کړئ (۱) او (۲) مثالونه په عملي توګه د خط کش په کارولو سره کار وکړئ..
– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو د کار څخه ليدنه کوي. که چيری کوم زده کوونکی پوښتنه درلودل او يا مشکل ولري مرسته او لارښوونه دې ورته وکړي.

**۲– مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (٦٩) مخ ته را وګرزوي بيا دې د لومړی ګروپ زده کوونکي ۵ سانتی متر په ملی متر سره وليکی. د دويم ګروپ زده کوونکي دې (۱) پوښتنه او دريم ګروپ زده کوونکي دې (۲) پوښتنه حل کړي. وروسته له هر ګروپ څخه دې يو، يو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي. که چيری ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! بیا هم د (٦٩) مخ په برخه کې زده کوونکو ته ووایاست د لومړی ګروپ زده کوونکي دې (٣) پوښتنه د دویم ګروپ زده کوونکي دې (۴) پوښتنه او دریم ګروپ زده کوونکي دې (۵) پوښتنه حل کړي.

– ښاغلی ښوونکی! د ګروپونو د کار مراقبت وکړئ، چې ټول زده کوونکي په حل کولو بوخت دي او که نه؟ بیا له هر ګروپ څخه یو، یو تن وټاکئ چې د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي.

**٣– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی پوه شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې څو ملي متره یو سانتي متر کیږي؟

– څوک وایې چې (٣) سانتی متره څو ملي متره کیږي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي باید د یوه ملي متر فاصله اندازه کړای شي.

– زده کوونکي وکړای شي خط کش د فاصلو د اندازه کولو له پاره وکاروي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي په خط کش باندې د سانتي متر او ملي متر د پیژندلو او پوهیدلو سره بلدتیا پیدا کوي کار ورځخه اخلي نو په ذهن کې بدلون راځي. او خوبني ښکاره کوي

**ارزښت:**

د ملي متر، سانتي متر، دیسي متر او متر پیژندنه د زده کوونکو له پاره زیات ارزښت لري ځکه هغوی کولی شي د اړتیا په وخت کې کار ورځخه واخلي د مختلفو مسافو لپاره یې وکاروي د ځان او نورو ستونزې حل کړي.




د حل شوي مثال څخه په کار اخیستنې سره لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

١. ۴ سانتي متره څو ملي متره کیږي؟

٢. ٦ سانتي متره څوملي متره کیږي؟

٣. د خپل خط کش څخه په کار اخیستنې سره لاندې قطعه خطونه اندازه کړئ ووایاست چې هر یو د هغو څو سانتي متره او څو ملي متره کیږي؟ ځواب: زده کوونکی دې په عملی توګه اندازه کړي.

أ ——— ب    ج ——— د    هـ ——— ز

۴. د ۵ سانتي مترو او ۵ ملي مترو په اندازه یو قطعه خط رسم کړئ

۵. یو قطعه خط رسم کړئ چې له ۵ سانتي مترو څخه ٢ ملي متره کم وي. ځواب: زده کوونکی دې رسم کړي.

په عمومي توګه لیکلی شو چې:

١٠٠ سانتي متره = ١ متر

١٠ دیسي متره = ١ متر

١٠٠٠ ملي متره = ١ متر

١٠ سانتي متره = ١ دیسي متر

١٠ ملي متره = ١ سانتي متر




٣ سانتي متره څو ملي متره کیږي؟

۵ سانتي متره څو ملي متره کیږي؟

٤ دیسي متره څو سانتي متره او څو ملی کیږي؟




**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (٦٩) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم کار وکړي او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: کیلومتر

**شپږ ویشتم لوست، (۷۰) مخ**
**وخت: ۲ ساعته ۴۵( دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکولئ شي له متر څخه لوی واحد، کیلومتر وپیژني.
**اصطلاح ګاني:** واحدونه، کیلومتر.
**د لوست مرستندوی مواد:** متر.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وویشئ. د هر زده کوونکي د (۶۹) مخ کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي. هغه اشتباه ګاني چې په ګروپونو کې د زده کوونکو له خوا ویل کیږي په تخته باندې دې ولیکل شي. د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه دې د اړوند ګروپ له خوا پیدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي. بیا دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

– څوک ویلای شي چې د کابل او هرات تر منځ واټن (فاصله) د څه شي په واسطه اندازه کوي؟

– څوک ویلای شي چې د دوو هیوادونو تر منځ واټن (فاصله) د څه شي په واسطه اندازه کوي؟

– ښاغلی ښوونکی! ښایي چې یو شمیر زده کوونکي کیلومتر ووایې، او یا ونشي ویلای. تاسو ورته ووایاست چې ۱۰۰۰ متره د کیلومتر په نامه یادیږي یا ۱۰۰۰ متره یو کیلومتر کیږي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې د کتاب (۷۰) مخ خلاص کړي. د حامد او پلار کیسه یې په خپل ګروپونو کې په دقت سره مطالعه کړي او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن د پلار او زوی کیسه ووایي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدایت ورکړی چې د کتاب د (۷۰) مخ مثال ته په ډیر دقت سره وګوري او مطالعه یې کړي. بیا دې یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي او حل شوی مثال دې نورو زده کوونکو ته تشریح

**شپږ ویشتم لوست: کیلو متر**

هدف: زده کوونکي وکولی شي د متر څخه لوی واحد، کیلو متر وپیژني.

حامد له خپل پلار څخه پوښتنه وکړه. پلار جانه کوچني واټنونه(فاصلې) مو د سانتي متر او متر په واسطه اندازه کړل، د دوو ښارونو تر منځ واټن په څه شي سره اندازه کوي؟ پلار یې ځواب ورکړ زویه، لوی واټنونه لکه د ښارونو او هیوادونو تر منځ واټنونه د کیلو متر په واسطه اندازه کوي.
حامد پوښتنه وکړه کیلو متر څه شی دی؟ پلار یې ځواب ورکړ یو زر (۱۰۰۰) متر واټن ته یو کیلو متر وایې یعنې.
۱۰۰۰ متره = ۱کیلومتر
مثال: که چیرې د دوو ښارونو ترمنځ واټن ٦ کیلو متره وي نو موږ یې واټن په متر سره حساب کړئ.
٦۰۰۰ متره = ۱۰۰۰ متر + ۱۰۰۰ متر + ۱۰۰۰ متر + ۱۰۰۰ متر+ ۱۰۰۰متر+۱۰۰۰متر
٦۰۰۰متر = ٦×۱۰۰۰




۱. ۴ کیلو متره له څو مترو سره مساوي کیږي؟ ځواب: ۴۰۰۰ متره = ۴×۱۰۰۰
۲. ۷ کیلو متره له څو مترو سره مساوي کیږي؟ ځواب: ۷۰۰۰ متره = ۷×۱۰۰۰
۳. ۲٤کیلو متره څو متره کیږي؟ ځواب: ۲۴۰۰۰ متره = ۲۴×۱۰۰۰

کورنی دنده

د کابل او هرات ترمنځ واټن ۱۰۹۳ کیلومتره دی، که چیرې د کابل او قندهار ترمنځ واټن ۵۰۵ کیلومتره وي، د قندهار او هرات ترمنځ واټن معلوم کړئ.







کړي که چیرې ستونزي ولري لارښوونه ورته وکړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

– زده کوونکي دې د کتاب د (۷۰) مخ پوښتنې په ګروپونو کې حل کړي. او له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن، یوه، یوه پوښتنه پرتخته حل کړي که چیرې ستونزې ولري مرسته ورسره وکړئ.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی پوه شي چې زده کوونکو نوئ لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وشي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې له متر څخه لوی واحد څه شی دی؟ په کوم وختونو کې له هغه څخه کار اخستل کیږي؟

– څوک وایې چې د دوو ښارونو تر منځ واټن د څه شئ په

واسطه اندازه کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي کیلومتر وپیژني او وویلای شي چې یو کیلومتر ۱۰۰۰ متره کیږي. زده کوونکی وکړای شي ۳ کیلومتره په متر باندې واړ وي.

**ذهنیت:**

د کیلومتر په پیژندلو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي هغوی د دوو ښارونو او یا هیوادونو تر منځ د واټن د پیدا کولو له پاره په خوشحالی سره هڅه کوي او هدف لاس ته راوړي.

**ارزښت:**

څرنګه چې زده کوونکي تل د رادیو، تلویزیون یا نورو له خوا کیلومتر اوري. نو د هغه د مفهوم سره پیژندګلوي ډیره ضروري ګڼل کیږي. باید زده کوونکی وپیژني د اړتیا په وخت کې له هغه څخه کار واخلي او هم په نورو ټولګیو کې زیاته اړتیا ورته پیدا کیږی.

**۴- کورنۍ دنده:**

د کابل او هرات ترمنځ واټن **۱۰۹۳** کیلومتره دی که چیرې د کابل او قندهار ترمنځ واټن **۵۰۵** کیلو متره وي د قندهار او هرات ترمنځ واټن معلوم کړی؟



## سرليک: ټکي (نقطې)، ټوټه خط، نيم خط او مستقيم خط

**اووه ويشتم لوست،** (۷۱، ۷۲) مخونه

**لومړۍ برخه**

**وخت:** ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يي)

**هدف:** زده کوونکي ټکی (نقطه)، ټوټه خط، نيمايي خط (شعاع) او مستقيم خط وپيژني او يو له بله سره توپير وکړای شي.

**اصطلاح ګانې:** شعاع، نيم خط، مستقيم خط، ټوټه خط، ټکی.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، کاغذ.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو باندې وويشل شي. د کورنی دندې په برخه کې چې ۱۰۰۰ متره، ۳۰۰۰ متره څو کيلومتره کيږي په ګروپونو کې ورباندی بحث او خبرې وکړي. هغو زده کوونکو چې اشتباه کړي ده اشتباه ګانې دې د زده کوونکو په واسطه صحيح شي که چيرې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! د دې له پاره چې زده کوونکو ته ذهنيت پيدا شي او د نقطې په مفهوم باندې پوه شي نو له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:

– څوک کولی شي ټکي لرونکي توري او بې ټکي توري په تخته باندې وليکي؟

– ښاغلی ښوونکی! کله چې زده کوونکي له ټکي سره پېژندګلوي پيدا کړي. بيا دې لاندې فعاليت سر ته ورسوي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست خپل قلمونه په کاغذ باندې کښېږدي ترڅو د کاغذ په مخ باندې يوه نښه پيدا شي. هغه نښه په (ن) سره وښياست.

– ښاغلی ښوونکی له ګروپونو څخه کتنه کوي ترڅو ډاډمن شي چې زده کوونکي دا عمل په صحيح توګه سرته رسوي. له هغه پرته مرسته دې ورسره وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ. دا نښه چې د کاغذ په مخ باندې مو ايښې ده د څه په نامه ياديږي.

که چيرې زده کوونکی ځواب وواېي چې د نقطې نښه به وي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی ورته وواېي دا ډول نښه نقطه بلل کيږي او په يوه توري سره يې ښيي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته وواېي چې په

# اتم فصل
## هندسه

**اوه و يشتم لوست: نقطه قطعه خط، نيم خط او مستقيم خط**

**هدف:** زده‌کوونکی ټکی (نقط)، قطعه خط، نيمايي خط(شعاع) او مستقيم خط وپيژني او يو له بله سره توپير وکړای شي.



**په ټولګي کې د زده کوونکو فعاليت**

تا سو لاندې هندسي شکلونو او نومونو ته پاملرنه وکړئ. او له هر يوه سره چې بلدتيا لرئ نوم يې واخلئ او رسم يې کړئ.




پورتني شکلونه په نظر کې ونيسئ او لاندې پوښتنو ته ځواب وواياست:

۱- دا (.) نښه چې د پنسل د څوکې په واسطه د کاغذ د پاڼې په مخ اېښودل شوې ده څه نوميږي؟

۲- د (ا●———●ب) شکل دڅه په نامه يا ديږي؟

۳- که چيرې د خپل پنسل څوکه په کاغذ باندې کښېږدو او په مستقيم ډول حرکت ورکړو څه شی لاس ته راځي؟




ګروپونو کې د کاغذ په مختلف ځايونو کې ۴ نقطې کښېږدي. او هره نقطه په يوه توري سره وښياست. او د هم هغه توري په نامه يې ولولي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته هدايت ورکړي چې د (ج) او (د) دوه نقطې د کاغذ په مخ باندې کښېږدي خپل خط کش را واخلئ داسې يې کښېږدئ چې د (ج) او (د) د نقطو په امتداد وي. بيا قلم د (ج) په نقطې باندې کښېږدی او يو خط وکاږئ ترڅو د (د) نقطې ته ورسيږي. ښاغلی ښوونکی! کله چې زده کوونکي دا کار عملي کړي. بيا له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:

– څوک ويلای شي چې د پيل نقطه کومه نقطه ده؟

– څوک ويلای شي چې د پای نقطه کومه نقطه ده؟

– ښاغلی ښوونکی! کله چې زده کوونکو د پيل او پای نقطې وپيژندلې. بيا له هغو څخه پوښتنه وکړئ چې د (د) او (ج) د نقطو تر منځ څه شئ شتوالی لري. ښايي چې ځنې زده کوونکي ځواب وواېي د (د) او (ج) د نقطو تر منځ خط شتوالی لري بيا زده کوونکي په دې پوه کړئ دا ډول خط چې د دوو نقطو تر منځ شتوالی ولري د ټوټه خط په نامه ياديږي. له دې وروسته دا ډول خطونه بايد د ټوټه خط

په نامه یاد کړئ.

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکو ته هدایت ورکړئ چې د کاغذ په مخ باندې د (ب) یوه نقطه ولیکي. بیا د (ب) په نقطې باندې خپل قلم کښیږدئ د خط کش څخه په کار اخستنې سره یو خط د (ب) ښي خواته رسم کړئ په داسې حال کې چې دوام ولري. څرنګه چې له کاغذ څخه بهر ته ځي یعنی ډېر زیات اوږدوالی لري نو هغه داسې ښیي ⟵● ب

⟶ دا تیر د دې معنا ورکوي چې یوی خواته ادامه لري یعنې پای نه لري دا ډول خط ته نیم خط وایي. بیا زده کوونکو ته وواياست چې د (ج) یوه نقطه د کاغذ په مخ باندې ولیکئ د خط کش څخه په کار اخستنې سره د (ج) د نقطې کینې خواته داسې ج●⟶ یو خط رسم کړئ چې دا ډول خط هم د نیم خط په نامه یادیږي.

– ښـــاغلی ښـــوونکی! زده کـــوونـــکو ته وواياست چې د (ن______م) یو ټوټه خط رسم کړي. بیا دې خط را واخلي هم هغه ټوټه خط دې کینې او ښئ خواته داسې امتداد ورکړي.




کله چې زده کوونکي دا ډول خط رسم کړي هغوی ته دې وویل شي. په هر ځای کې چې دا ډول خط ګورئ. هغه ته مستقیم خط وواياست. هر څومره چې وغواړو دواړو خواته امتداد ورکولی شو.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۷۱ او ۷۲) مخونو ته را واړوئ چې د خپل کتاب مخونه خلاص کړي او په غور سره یې مطالعه کړي. له کومو هندسي شکلونو سره چې پخوا پېژندګلوی پیدا کړي وه هغه دې په خپلو ګروپونو کې ولیکي. او هم له هغو شکلونو سره چې پېژند ګلوی نه لري نومونه دې جلا ولیکي.

ښاغلی ښوونکی! که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳– آرزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډه شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړئ.

۴- په لاندې هر یو شکل کې څو قطعه خطونه وجود لري؟




۵- که چیرې د (ا ب) قطعه خط ته د ښي او کینې خواته امتداد ورکړو کوم هندسي شکل لاس ته راځي.




د کاغذ پرمخ دوه نقطې وټاکی او بیا یې په مستقیمه توګه یو له بل سره ونښلوئ په دواړه نقطو باندې نومونه کیږدی یعنی ۱، ب، وواياست چې دا خط په څه نامه یادیږي؟

اوله مستقیم خط سره څه توپیر لري

کورنی دنده




زده کوونکي دې لاندې شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم کړي او دهغو نومونه دې ولیکي.







**پوهه:**

– څوک وایي چې دا خطونه یو له بله سره څه توپیر لري؟




**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي نقطه، ټوټه خط، نیم خط او خط وپیژني یو له بله توپیر وکړي. زده کوونکي وکړای شي نقطه، ټوټه خط، نیم خط او خط رسم کړي.

**ذهنیت:**

د دې هندسي شکلونو او خطونو په پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په خپل نفس باور پیدا کوي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

څرنګه چې نقطه، ټوټه خط، نیم خط او خط د هندسي اساس جوړوي. د هندسي د زده کړې له پاره ډېر ارزښت لري.

**۴– کورنی دنده:**

ښـــاغلی ښـــوونکی! د کتاب (۷۲) مخ کورنی دنده دې زده کوونکي د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

## سرلیک: په شکلونو کې د ټکی (نقطې)، ټوټه خط، نیم خط او مستقیم خط پرته له تعریف څخه

**اووه ویشتم لوست، (۷۳) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي ټکی (نقطه)، ټوټه خط، نیم خط (شعاع) او مستقیم خط وپیژني او یو له بله سره توپیر وکړای شي.

**اصطلاح ګاني:** ټکی، ټوټه خط، نیم خط (شعاع) او مستقیم خط.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، کاغذ.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د (۷۲) مخ کورنۍ دنده په ډیر غور سره وګورئ. هغو زده کوونکو چې خپله کورنۍ دنده په صحیح توګه سر ته رسولې نه ده یعنی کار یې نه دی کړي. نومونه یې له ځان سره ولیکئ. بیا د زده کوونکو اشتباه ګانې په تخته باندې ولیکی. او صحیح ځوابونه یې په تخته باندې تشریح کړئ. که چیرې زده کوونکي د کورنۍ دندې په برخه کې پوښتنې او ستونزې ولري مرسته او ورته لارښوونه وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو وویشئ یو زده کوونکی مثلاً: حمید د ټولګی د مخې کیڼې لورې ته ودروئ او نورو زده کوونکو ته ووایاست. په خپل ګروپونو کې د کاغذ په مخ باندې د (م) یوه نقطه ولیکئ. بیا حمید ته ووایاست د ټولګی په مخ کې وښي خواته حرکت وکړئ. او نور زده کوونکي دې د (م) له نقطې څخه ښي خواته یو خط رسم کړي. له څو قدمونو وروسته دې حمید ته ووایې چې ودریږي. او زده کوونکي دې هم د خط رسم کول بس کړي او وروستۍ نقطې ته دې (ل) ووایې او ودې لیکي. بیا دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

– څوک ویلای شي چې حمید له کومې نقطې څخه حرکت پیل کړی دئ؟

– حمید په کومه نقطه کې دریدلی دئ؟

**پوښتنې:**

۱- له دې شکلونو څخه کوم یو یې مستقیم خط، کوم یو یې نیمایي خط (شعاع) او کوم یو یې قطعه خط دی؟

(۷) (۴) (۳) (۵) (۶) (۲) (۱)

زده کوونکي دې په شکلونو کې پیدا کړي.

د (۱) ګڼې پوښتنې شکلونه په نظر کې ونیسئ. د شکلونو له مخې لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

الف: آیا یو مستقیم خط او یوه شعاع یو له بله څخه توپیر لري؟

ب: یوه شعاع او یو قطعه خط یو له بله څه توپیر لري؟

ج: یو قطعه خط او یو مستقیم خط یو له بله څه توپیر لري؟

۲- په لاندې شکل کې څو مستقیم خطونه، او څو قطعه خطونه دي.

کورنۍ دنده

ا ب

په لاندې شکل کې څو قطعه خطونه لیدلی شئ؟ د دوو ټکو په واسطه یې وښایاست.

ا ب ج د

ځواب: د ا ب ټوټه خط
ب ج ټوټه خط
ج د ټوټه خط
ا ج ټوټه خط
ب د ټوټه خط
ا د ټوټه خط

۷۳

– هغه شکل چې د کاغذ په مخ باندې مو رسم کړی دی د څه په نامه یادیږي؟

– که چیرې حمید په ټولګی کې نه وي یا یې مخې ته دیوال نه وی په یوه دښته کې وي او هیڅ و نه دریږي د حمید حرکت په کاغذ باندې څرنګه ښودلای شئ. او دا شکل د څه په نامه یادیږي؟

– ښاغلی ښوونکی باید زده کوونکو ته ووایاست:

۱– حمید د (م) له نقطې څخه په حرکت پیل وکړ.

۲– حمید د (ل) په نقطې کې دریږي.

۳– دا شکل. ل ●———● م چې مو رسم کړی دی ټوټه خط بلل کیږي.

۴– که چـیرې مخې ته دیوال نه وي د حمید حرکت داسې ●———> دی دا شکل نیم خط (شعاع) بلل کیږي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست که ستاسو ورونه حمید او سلیم په یوه دښته (صحرا) کې وي. او د هغو د حرکت مخې ته هیڅ مانع کوونکی نه وي. او حمید د (ج) له نقطې څخه وښي لورې ته په حرکت کې شي او

سلیم هم له هم هغې (ج) له نقطې څخه کیڼ لوري ته په حرکت کې شي. او ستاسو د دواړو ورونو حرکت پای ونه لري.
ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې دا فعالیت په ګروپونو کې کار وکړي او د یوه کاغذ په مخ باندې د (ج) یوه نقطه ولیکي بیا د (ج) له نقطې څخه د حمید او سلیم حرکتونه ښي او کیڼ لوري ته وښیې. او زده کوونکو ته دې وویل شي. کله چې حرکت پای ونه لري د ( ←——● ) تیر د نښې په واسطه یې وښیاست.
– زده کوونکي باید د حمید او سلیم حرکتونه داسې ( ←—ج—→ ) وښیې.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۷۳) مخ ته را واړوي چې خپل کتاب خلاص کړي. (۱) او (۲) شمیره پوښتنې دې په ګروپونو کې د کتاب له هدایت سره سم کار وکړي. ښوونکی دې د ګروپونو له کار څخه لیدنه کوي که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ پیدا کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک د ټوټه خط او نیم خط تر منځ توپیر وایي؟
– څوک د نیم خط (شعاع) او خط تر منځ توپیر وایي؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي د لاندې خطونو نومونه ولیکي.




**ذهنیت:**

– د پورته پوهې په اخستلو سره او د نقطې، ټوټه خط، نیم خط او مستقیم خط تر منځ د توپیر په پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او په خوښۍ سره داسې شکلونه ښیې.

**ارزښت:**

د دې ډول هندسي شکلونو او خطونو تشخیص د زده کوونکو په ژوند کې ډیر ارزښت لري هغوی د اړتیا په وخت کې کار ورڅخه اخستلای شي، خپلې او د نورو ستونزې حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (۷۳) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي. سبا ته دې له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د خط ډولونه

**اته ویشتم لوست، (۷۴، ۷۵) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي مستقیم خط، منکسر خط او منحني خط وپیژني او هم یو له بله توپیر وکړای شي.
**اصطلاح ګاني:** مستقیم خط، منکسر خط، منحني خط.
**د لوست مرستندوی مواد:** تار، لښته او نور محیطي مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې په دري ګروپونو وویشل شي. د (۷۳) مخ کورنۍ دنده په ګروپونو کې وګورئ هغو زده کوونکو چې اشتباه کړي ده اشتباه ګاني کړي دې پرتخته ولیکل شي. بیا دې صحیح ځواب د هغه زده کوونکی په واسطه پیدا شي. چې خپله کورنۍ دنده یې په صحیح توګه سرته رسولي وي. که چیرې زده کوونکي ستونزي ولري مرسته او لارښوونه ورسره وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! یوه سیخه (مستقیمه) لمده لښته په خپل لاس کې ونیسه او زده کوونکو ته یې وښیاست زده کوونکو ته وواياست د دې سیخې (مستقیمې) لښتې شکل په خپل کاغذ کې رسم کړئ. ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو د کارونو څخه لیدنه او څارنه کوي چې زده کوونکی داسې (————) خط رسم کړي.

– بیا دې ښاغلی ښوونکی څو زده کوونکو ته ووایې چې د ټولګی مخې ته په مستقیم ډول اوږه په اوږه ودریږي وروسته له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ. په مسجد شریف کې په امام پسې د جمعي (جماعت) په لمانځه کې څه ډول په صف کې دریږی. زده کوونکی باید ځواب ووایې په مستقیمه (سمه) توګه دریږي. ښاغلی ښوونکی یوه زده کوونکی مثلاً احمد ته ووایاست د ټولګی مخې ته په مستقیم ډول څو قدمونه ووهه. یو زده کوونکي دې د هغه قدمونه ولیکي او د مستقیم خط په مخ دې وښیې فرضاً د هغه د پیل نقطه (ب) او د پای نقطه یې (ج) وي. ج ●————● ب

– ښاغلی ښوونکی! دویم واري بیا احمد ته ووایاست. د ټولګې له یو ګوټ (کونج) یعني د (ب) له نقطې څخه حرکت وکړه او بل ګوټ ته یعنی د (ج) نقطې ته ولاړ شه او هلته ودریږه. نور زده کوونکي دې د هغه قدمونه ولیکي او په یوه

# اته ویشتم لوست: د خط ډولو نه

هدف: زده کوونکي مستقیم خط، منکسر خط، او منحني خط وپیژني او هم یو له بله توپیر وکړای شي.

په ټولګي کې د زده کوونکو فعالیت

د چو کاټ شکلونو نو مونه ولولی او په خپلو کتابچو کې رسم کړی.




لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست.

الف: له لاندې شکلونو څخه کوم یو یې منکسر خط دی او کوم یې منکسر خط نه دی؟




ب: ستاسو د مېز یوه څنډه یا د کتاب یوه څنډه مستقیم قطعه خط دی او که منحني خط؟



ځواب: مستقیم ټوټه خطونه دي.

ج: دا دوه شکلونه د ا●——●ب او ←——→ یو له بله څه توپیر لري؟

ځواب: د ا ب شکل ټوټه خط ښیې او بل یې مستقیم خط ښيې یعني یو یې ټوټه خط او بل یې مستقیم خط دئ.




شکل کې دې داسې وښیې:




– ښاغلی ښوونکی! له ګروپونو څخه لیدنه او کتنه وکړئ چې زده کوونکي دا کار په صحیح توګه کوي او که نه؟ بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي:

**الف:** په لومړی واري احمد څه ډول حرکت وکړ او څو قدمه ولاړ؟
**ب:** په دویم واري احمد څه ډول حرکت وکړ او څو قدمه ولاړ؟

– زده کوونکي باید ځواب ووایې چې په لومړی واري احمد په مستقیم ډول قدم ووهه او ژر د (ج) نقطې ته ورسید. په دویم واري احمد کوږ قدم ووهه او ناوخته د (ج) نقطې ته ورسید.

– ښاغلی ښوونکی! هم هغه لومړی لمده مستقیمه لښته په خپل لاس کې ونیسه. او هغه په څو ځایونو کې داسي ماته کړه چې یو له بله جلا نشي او دا ماته شوي لښته زده کوونکو ته وښیاست، چې زده کوونکي یې په خپله کتابچو کې رسم کړي. او باید داسي یې رسم کړي:




– ښاغلی ښوونکی دې د مات شوی لښتې په ښودلو سره لاندې پوښتنې وکړي:

– د لښتې ټوټې چې یو له بله جلا شوی نه دې هر یوه یې څه شکل لري؟

– خپل رسم کړي شکل ته وګورئ او وواياست څو قطعه خطونه ليدل کيږي؟

– آيا په خپل ځان او يا شاوخوا کې دا ډول مات شوی خطونه ښودلای شئ؟ زده کوونکی باید د کرتې غاړه، ږمنځ، داري غاښونه، او داسې نور وښيې؟

– ښـــاغلی ښـــوونکی! هغه رســـمونه چې زده کوونکو په خـــپلو ګـــروپونو کـــې کـــار کـــړئ دی پرتخته دې رســـم کـــړي او تر خـــطونو لاندې د هر يوه نوم وليکئ.




– ښاغلی ښوونکی! یو لمده مستقیمه لښته په لاس کې ونیسه او زده کوونکو ته یې وښیاست زده کوونکی دې د هغې شکل په کاغذ باندې رسم کړي او نوم دې وليکي. (———— مستقیم خط)

– بیا دې ښاغلی ښوونکی د لښتې په دواړو سرونو باندې فشار وارد کړي چې لښته لږه منحنې ډوله شي او زده کوونکو ته وواياست چې اوس دا شکل په کاغذونو کې رسم کړي. ب ⌣ الف

– په همدې ډول یو تار په خپل لاس کې ونیسئ لومړئ هغه ښه کش کړئ چې مستقیم شکل ونیسي. بیا خپل دواړه لاسونه سره نږدې کړی وروسته زده کوونکو ته وواياست په دواړو حالتونو کې د تار شکل رسم کړي زده کوونکی باید داسې رسم کړی.




– ښاغلی ښوونکی! له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ د منحنی خط شکل په خپل ځان، ټولګی یا کوم بل ځای کې پیدا کولئ شي زده کوونکي باید لیندی، میاشت، د غوږونو دوره، د سترګو وروځې او نور ووايي.

**۲– مشق او تمرین:** ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۷۴ او ۷۵) مخونو ته را وګرزوئ چې دا مخونه په ډیر غور سره مطالعه کړي. که چیری ستونزي ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي. د ستونزو له حل کولو وروسته دې یو، یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي له (الف) څخه تر (و) پوري وپوښتئ که چیرې ستونزي ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳– آرزونه:** د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي

د: که چېري یو تار د خپل دواړو لاسونو په واسطه ښه کش کړئ کوم خط ښيې، که چېري کش يې نه کړئ او خپل لاسونه سره نږدې کړئ کوم خط ښيې.

هـ: په خپل ټولګی کې د څوشيانو نومونه واخلی چې د منکسر خط او منحنې خط شکلونه ولري.



و: لاندې شکلونه په نظر کې ونیسئ د هر یو شکل د خط نوم په خپلو کتابچو کې وليکئ.




کورنۍ دنده

د خپل د ژوند چاپیریال کې د هغو شیانو او شکلونو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکئ چې د منکسر، منحني او مستقیم خطونو شکل ولري.

ځواب: د زده کوونکو کار دی.




چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوښته:**

– څوک د کتاب په (۷۵) کې منکسر خط، منحنی خط او مستقیم خط ښیې؟

– څوک په ټولګی کې منکسر خط، منحنی خط ښيې؟

**مهارت:** مستقیم خط، منکسر خط او منحنې خط وپېژني او يو له بله توپير وکړای شي.

– زده کوونکي مستقیم خط او قطعه خط رسم کړای شي

– زده کوونکی دې منکسر خط او منحني خط رسم کړای شي.

**ذهنیت:** د دې خطونو په پيژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په ځان باور پيدا کوي او خوبنې ښکاره کوي.

**ارزښت:** د دې خطونو رسم کول د زده کوونکو له پاره ګټور دي هغوی په هندسې شکلونو او نور ځایونو کې د داسې خطونو تشخیص کوي. په نقاشي او د تصویرونو په رسم کولو کې کار ورڅخه اخلي.

**۴– کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د کتاب د (۷۵) مخ کورنۍ دنده سرته ورسوي او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د زاویې ډولونه

**نه ویشتم لوست، (۷٦–۷۷) مخونه**

**لومړئ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:**

– زده کوونکي وکړای شي قایمه زاویه وپیژني او له کاغذ څخه یې جوړه کړي.

– زده کوونکي د خپلې جوړې کړي قایمې زاویې په کارولو سره حاده زاویه او منفرجه زاویه وپیژني.

**اصطلاح ګانې:** زاویه، قایمه، حاده، منفرجه، د زاویو ډولونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د کاغذ پاڼه، لبنته، د قایمې زاویې شکل، حاده، منفرجه او نور محیطي مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وویشئ د کتاب د (۷۵) مخ کورنۍ دنده چې زده کوونکو د کتاب له هدایت سره سم سرته رسولې ده وګورئ. هر زده کوونکی چې کوم شیان لیکلي دي. هغه دې په اړوند ګروپ کې تر دقیق او غور لاندې ونیول شي. بیا دې د ټولو زده کوونکو له لیکلو څخه یو عمومي ګډ لست جوړ کړي له هر ګروپ څخه دي یو، یو تن خپل لیکلي شیان نورو زده کوونکو ته ولولي.

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست تاسو هر یو، یوه، یوه د کاغذ پاڼه په خپل لاس کې ونیسئ. او بیا زده کوونکو ته وواياست د کاغذ پاڼه په خپله خوښه سره قات کړئ. کله چې ښاغلي ښوونکی ډاډه شي چې زده کوونکو دا کار سرته رسولی دی، نو ښاغلي ښوونکی دې دویم واري بیا زده کوونکو ته وواېي چې دا قات شوي پاڼه دویم ځلې بیا داسې قات کړی. چې دویمه قات شوي برخه په لومړی قات شوي برخې باندې راشي.

کله چې ښاغلي ښوونکی ډاډ تر لاسه کوي چې زده کوونکو ته وواېي. د کاغذ قات شوی ګوټ (کونج) را واخلي د میز په ګوټ، د کتاب په ګوټ، دوره په ګوټ، د کړکۍ په ګوټ او د نورو شکلونو او شیانو په ګوټونو باندې کښیږدی، ورته وګورئ





تاسو له پخوا د لاندې شکلونو سره پیژند ګلوي لرئ.



اوس غواړو چې قایمه زاویه په عملي توګه له کاغذ څخه جوړه کړو او له هغې څخه په کار اخېستنې سره نورې زاویې یې وپیژنو.

ګرانو زده‌کوونکو! تاسو هر یو یوه ټوټه کاغذ په لاس کې ونیسئ.

الف: هغه قات کړئ.

ب: قات شوی کاغذ په یو بل باندې داسې قات کړئ چې د قات شوي کاغذ څنډې یو په بل باندې منطبق راشي.

ج: قات شوی کاغذ کنج یوه قایمه زاویه جوړوي.

د: قات شوی کنج د کاغذ په مخ باندې کښیږدئ او زاویه رسم کړئ.

هـ: خپله رسم کړې زاویې ته پاملرنه وکړئ وواياست چې د لاندې کومې یوې زاویې سره برابره ده؟ او وواياست له کومې یوې زاویې څخه لویه او له کومې یوې زاویې څخه کوچنۍ ده؟




او پرتله یې کړی وواياست چې یو له بله څه توپیر لري؟

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکي له دې پرتله کولو څخه باید دا نتیجه واخلي چې د قات شوی کاغذ ګوټ (کونج) له نورو ګوټونو سره هیڅ توپیر نه لري. که چیري زده کوونکي په دې برخه کې ستونزې ولري ښاغلي ښوونکی دې ورته وواېي چې دا ګوټونه توپیر نه لري په عملي شکل دې لارښوونه ورته وکړي.

– ښاغلي ښوونکی! زده کوونکو ته هدایت ورکړئ خپل قات کړی کاغذ په کتابچې باندې کښیږدي قات شوی څنګونه د خطونو په واسطه یو له بله سره ونښلوئ وګورئ چې یو شکل رسم کیږي په دې شکل کې ګوټ یا زاویه وښیاست.

– کله چې ښاغلي ښوونکی باوري شی چې زده کوونکو ته داسې قایمه زاویه شکل رسم کړی دی. نو له رسم کولو وروسته زده کوونکو ته وواياست چې دا شکل قایمه زاویه بلل کیږي په هر ځای کې چې داسې شکل وینئ باید پوه شئ چې قایمه زاویه ده.

– ښاغلي ښوونکی دې یوه لبنته په خپل لاس کې ونیسي

او هغه دې داسې ماته کړي چې يو له بله سره جلا نشي.

ماتي شوې ټوټې دې يو، بل ته داسې نږدې کړي چې له قايمې زاويې څخه کوچنۍ وي او زده کـوونکو ته دې وويل شي چې هغه په خـپلو کتابچو کې رسم کړي لکه دا (حاده زاويه) شکلٚ بيا دې له خپلې قايمې زاويې سره پرتله کړي چې له قايمې زاويې څخه کوچنۍ ده او که نه؟

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي له دې پرتله کولو او رسم کولو څخه بايد دې نتيجې ته ورسيږي او ووايي هغه زاويه چې له قايمې زاويې څخه کوچنۍ وي حاده زاويه بلل کيږي.

– ښاغلی ښوونکی! په دويم واري د لښـــتې ټوټې زده کوونکو ته داسې وښـــياست چـــې له قايمې زاويې څخه لويه وي لکه دا ( ) شکل، زده کوونکو ته ووایاست چې دا شکل په خپلو ګروپونو کې رسم کړي. زده کوونکی بايد داسې (منفرجه زاويه) رسم کړي. بيا ورته ووایاست دا زاويه منفرجه زاويه بلل کيږی.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست. خپل رسم کړی شکل د خپلې جوړې کړي قايمې زاويې سره پرتله کړئ ووایاست چې قايمې زاويې څخه کوچنۍ ده او که لويه، ښايي چې زده کوونکي له پرتله کولو وروسته ووايي لويه ده. بيا زده کوونکو ته ووایاست هره زاويه چې له قايمې زاويې څخه لويه وي منفرجه زاويه بلل کيږي. نو تاسو په خپله رسم کړي زاويه باندې منفرجه زاويه وليکئ.

**۲– مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۷۶– ۷۷) مخونو ته را وګرزوئ چه مطالعه يې کړي. د زده کوونکو فعاليت په غور سره ولولئ له هر ګروپ څخه دې يو، يو تن له مطالعې څخه اخيستی مطلب د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي. که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوښته:**

– څوک د کاغذ له ټوټې څخه قايمه زاويه جوړه وي؟




په پورته شکلونو کې به ووينئ چې ستاسو جوړه کړې زاويه د قايمې زاويې سره برابره ده. او حاده زاويه له هغې څخه کوچنۍ او منفرجه زاويه له هغې څخه لويه ده.




زده کوونکي دې د کاغذ له يوې ټوټې څخه قايمه زاويه جوړه کړي او ټولګي ته دې را وړي.




– څوک د خپلې جوړې کړي قايمه زاويې په کارولو سره د لاندې زاويو نومونه اخلي؟




**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي قايمه، منفرجه او حاده زاويې رسم کړي.

– زده کوونکي وکړای شي د قايمې زاويه څخه، کوچنۍ او لويه زاويه رسم کړي.

**ذهنيت:**

زده کوونکي د دې زاويو په پيژندلو سره خوښي ښکاره کوي او په ذهنيت کې بدلون رامنځ ته کيږي.

**ارزښت:**

– د زاويو پيژندل ډير ارزښت لري زده کوونکي کولی شي د قايمې زاويې په کارولو سره د ترکاڼي، معمارۍ او حلبي جوړولو کې کار واخلي او په ډيره مينه سره خپل ستونزې يې حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د (۷۷) مخ کورنۍ دنده د

# سرلیک: د زاويي ډولونه

**نه ویشتم لوست، (۷۸، ۷۹) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدفونه:**

– زده کوونکي وکړای شي قایمه زاویه وپیژني او له کاغذ څخه يې جوړه کړي.

– زده کوونکی د خپلی جوړي کړي قایمي زاويې په کارولو سره حاده زاويه او منفرجه زاويه وپیژني.

**اصطلاح ګاني:** قایمه زاويه، حاده زاويه، منفرجه زاويه او د زاويو ډولونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د کاغذ پاڼه، لښته، تار او نور محیطی مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وويشي. د هر زده کوونکي جوړه کړي زاويه دې په غور سره وګوري چې په رښتيا سره قايمه زاويه يې جوړه کړې ده او که نه؟ که چيرې يې غلطي کړي وي. لارښوونه دې ورته وشي، بيا دې هر هغه زده کوونکی چې غلطي يې کړې ده د کاغذ ټوټه را واخلي او د ټولو زده کوونکو په مخ کې دې قايمه زاويه جوړه کړي. که چيرې ستونزې ولري ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی دې (۴) زده کوونکو ته ووايي د کتاب، ميز، وره، کړکی او نور شيان چې په ټولګي ليدل کيږي او ګوټ (کنج) لرونکي دي، کونجو نه يې وښياست. ترڅو د کنج او زاويو په مفهوم ښه پوه شي..

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. تاسو په مخکنۍ ټولګی کې د مربع، مستطيل او مثلث شـــکلونه لـــيدلي دي او کـــه نه؟ ښايي چې ټول زده کوونکي لاسونه جګ کړي او ووايي هو.

– ښاغلی ښوونکی دې له يوه زده کوونکی لکه:

– احمد څخه پوښتنه وکړي چې مربع څو کنجونه لري؟ ۴کنجونه




۱ـ د خپلی جوړي کړي زاويه يې په کار ولو سره لاندې شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم او هغه زاويي پر تله کړئ وواياست. هر يو شکل څو زاويي لري او هم د هر شکل نوم وليکئ.







د پر تله کولو وروسته به تاسووويني چې مربع د څلورو قايمو زاويو لرونکی او مستطيل هم څلور قايمې زاويي لري او هم وواياست چې د هغو تر منځ توپير څه شئی دی؟

ځواب: د مربع څلور واړه ضلعې مساوی او د مستطيل خواوي دوه په دوه مساوی دي.

۲ـ د خپلی جوړي کړي زاويي څخه کار واخلي، د حاده، قايمه او منفرجه زاويه په لاندې شکلونو کې وښياست.




۷۸

– بيا دې له کريم څخه پوښتنه وکړي مستطيل څو کنجونه لري؟ ۴ کنجونه

– له صابر څخه دې پوښتنه وکړي مثلث څو کنجونه لري؟ ۳ کنجونه.

– ښاغلی ښوونکی که چيرې زده کوونکي ځوابونه ونشي ويلای، د نورو زده کوونکو په واسطه دې صحيح ځوابونه پيدا شي ترڅو ټول زده کوونکي ډاډ تر لاسه کړي چې مربع او مستطيل هر يو يې ۴ کنجونه لري. او مثلث دري کنجه لري. که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې د مربع، مستطيل او مثلث شکلونه پر تخته رسم کړي او کنجونه دې ورونبيي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدايت ورکړئ چې د کتاب (۷۸ او ۷۹) مخونه خلاص کړي د خپلی جوړې کړي قايمی زاويې په کارولو سره دې (۱) او (۲) پوښتنې حل کړي. ښاغلی ښوونکی د هغو د کار څارنه کوي د ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۷۸–۷۹) مخونو ته را وګرزوی د دې مخ (۲) پوښتنه لومړی ګروپ ته، (۳) پوښتنه دویم ګروپ ته او (۴) پوښتنه دریم ګروپ ته ورکړئ. چې په خپلو ګروپونو کې یې حل کړي او کار ورباندې وکړی. بیا دې یو یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی د ګروپونو له کار کولو څخه لیدنه کوي، که چیرې کومې ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښته:**

– څوک د لاندې زاویو او شکلونو نومونه اخلي؟



**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي قایمه زاویه جوړه کړي.

– زده کوونکی وکړای شي حاده او منفرجه زاویې رسم او د جوړې زاویې په واسطه یې وښیې.

**ذهنیت:**

– زده کوونکي د مختلفو زاویو په پیژندلو سره په ځان باور پیدا کوي. د زاویو په تشخیص کولو سره د هغو په ذهن کې بدلون راځي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

– د زاویو پیژندل د زده کوونکو په ورځني ژوند کې ارزښت لري. هغوی د زاویو د پراخوالی او کوچنیوالی په کارولو سره د اړتیا په وخت کې کار اخلي. د ځان او نورو ستونزې حل کوي.

۳- د خپلې قایمې جوړې کړې زاویې څخه په کار اخستنې سره دلاندې شکلونو زاویې اندازه کړئ او وواياست چې په هر شکل کې څو قایمې زاویې لیدل کیږي او هم دهغو حاده او منفرجه زاویې وښیاست.




۴- په لاندې هریو شکل کې څو حاده زاویې څو منفرجه زاویې او څو قایمه زاویې لیدل کیږي.







د خپل ټولګي او کورځینو اسبابونو ته ښه ځیر شئ، د (حاده، قایمه او منفرجه) زاویې چې په نظر مو راځي ولیکئ.




**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۷۹) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي.

# سرلیک: خلاص او تړلي شکلونه

**دیرشم لوست، (۸۰، ۸۱) مخونه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي خلاص او تړلي شکلونه يو له بله سره توپير او تشخيص کړي.
**اصطلاح ګاني:** شکلونه، خلاص، تړلي.
**د لوست مرستندوی مواد:** تار، لښته، زده کوونکي او نور محيطي مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې په دري ګروپونو وويشل شي. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو په واسطه وکتل شي، د ټولو ګروپونو له لستو څخه يو لست جوړ کړئ. چې تکرار نه وي. او هر ګروپ دې خپل جوړ کړئ لست په ديوال باندې ونښلوي. او ښاغلی ښوونکی دې له کار څخه ليدنه او لارښوونه وکړي. ښاغلی ښوونکی! له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ که چيري ستاسو د ټولګی کړکۍ او ور تړلی يعنی قفل وي. د ننوتلو او وتلو امکان شته؟

که چيري زده کوونکي ځواب ووايي چې نشته، نو ورته وواياست. ستاسو ټولګی کوم شکل لري تړلي شکل لري او که خلاص شکل، زده کوونکی به ځواب ووايي، تړلی شکل لري. دويم ځلی دې بيا له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. څه وخت ستاسو ټولګی خلاص شکل نيولای شي. زده کوونکي به ووايي کوم وخت چې دروازه خلاصه وي.

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو يو شپږ کسيز ګروپ د ټولګی په ګوټ او يا د ښونځی په غولي کې ودروي ورته ووایاست لاس په لاس شي او يوه حلقه جوړه کړئ. کله چې زده کوونکي دا فعاليت سر ته ورسوی بيا يوه زده کوونکی مثلاً فريد ته ووایاست يوه لاره پيدا کړه او حلقې ته ننوزه ښايي چې فريد شا او خوا را وګرزي او د ننوتلو لاره پيدا نه کړي. بيا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وشي، دې شپږو تنو زده کوونکو خلاص شکل

## نهم فصل

### خلاص او تړلي شکلونه

**دېرشم لوست: د خلاص او تړلو شکلونو پېژندنه**

**هدف:** زده کوونکي خلاص او تړلي شکلونه وپېژني يو له بله سره توپير او تشخيص کړي.

**په ټولګي کې د زده کوونکو فعاليت**

**پاملرنه وکړئ:**
دا يو خلاص شکل دی او دا يو تړلی شکل دی. دا يوه خلاصه منحني او دا يوه تړلې منحني ده.

۱- په لاندې شکلونو کې د هغو کوم يو شکل خلاص او کوم يو يې تړلی دی وېې ښياست؟




۲- په لاندې شکلونو کې کوم يوه يې خلاصه او کوم يوه يې تړلې ده؟




کورنۍ دنده

په خپله خوښه يو خلاص شکل او يو تړلی شکل رسم کړئ.




ترتيب کړی دی او که تړلي شکل؟

– زده کوونکي به ووايي څرنګه چې فريد د ننوتلو لاره پيدا نکړه نو تړلی شکل دئ. ښاغلی ښوونکی دې بيا زده کوونکو ته ووايي يوازې دوه تنه د تاسو دې يو د بل لاس پريږدي. يعنې يو دې خپل ښئ لاس او بل دې کيڼ لاس کښته او له ځانه سره ونيسي. په دی حالت کې فريد د دې دوو تنو له منځه تيريږي او حلقې ته ننوزي. په دې دويم وارې کې زده کوونکی بايد ووايي دا يو خلاص شکل دئ.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي چې اوس تاسو به خپله له تار يا لښتې او يا د نورو محيطي مواد څخه خلاص او تړلي شکلونه جوړ کړئ او له هر ګروپ څخه دې يو، يو تن خپل ترتيب کړي شکلونه د نورو ګروپونو غړو ته وښيي. ښاغلی ښوونکی دې د کار له جريان څخه ليدنه او څارنه کوي. هغو ګروپونو چې په ښه توګه کار سرته رسولی دی. هغه تشويق کړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې د خپل کتاب (۸۰) مخ خلاص کړي. او په کتاب کې په ګوته

شوی فعالیتونه مطالعه کړئ. بیا دې د (۸۰) مخ (۱) او (۲) ګڼې پوښتنې او د (۸۱) مخ (۳) ګڼه پوښتنه حل کړي.

– ښاغلی ښوونکی د کار څارنه کوي که کوم ګروپ ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورته وکړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی! ګروپي کارونه پرتله کړئ. کوم ګروپ چې کار په ښه توګه سرته رسولی وي تشویق یې کړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۸۱) مخ ته را وګرزوئ د دې مخ (۴) شمیره پوښتنه لومړي ګروپ ته (۵) شمیره پوښتنه دویم ګروپ ته او دریم ګروپ ته ورکړئ چې حل یې کړي بیا د هر ګروپ یو، یو تن ته دنده ورکړئ چې ګروپونه په وار سره خپل کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو د کار د جریان مراقبت او څارنه وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي:

**پوهه:**

– څوک له تار او لښتې څخه یو تړلی او یو خلاص شکل جوړ وي او ښیې؟

– څوک په ټولګي کې یو خلاص او یو تړلی شکل ښیي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې تړلي او خلاص شکلونه رسم کړي:

– دوه تړلي مختلف شکلونه رسم کړي.

– درې تړلي او درې خلاص مختلف شکلونه رسم کړي.

– څلور خلاص مختلف شکلونه رسم کړي.

۳- الف: آیا مثلث یو خلاص شکل دی او که تړلی؟

ب: آیا مربع یو خلاص شکل دی او که تړلی؟

ج: آیا مستطیل یو خلاص شکل دی او که تړلی؟

د: آیا دایره یوه خلاصه منحني ده او که تړلې؟

۴- د لاندې شکلونو څخه کوم یو یې تړلي او کوم یو یې خلاص دي؟




۵- هغه خلاص او تړلي شکلونه چې په خپل ټولګي کې وینئ وښیاست.

ځواب: زده کوونکي دی په ټولګي وښیي.




د دریو قطعه خطونو، څلورو قطعه خطونو، په واسطه خلاص او تړلي شکلونه رسم کړئ.






– دوه خلاص او درې تړلي مختلف شکلونه رسم کړي.

**ذهنیت:**

– د تړلو او خلاص شکلونو په پیژندلو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون او پراختیا را منځ کېږي هغوی کولئ شي د تړلو او خلاص شکلونو او ځایونو توپیر وکړي.

**ارزښت:**

– زده کوونکي د خلاص او تړلو شکلونو او شیانو په توپیر سره کولئ شي د هر یوه په ګټه ځان پوه کړي او د اړتیا په وخت کې له تړلو او خلاصو شکلونو څخه کار واخلي په ورځنۍ ژوند کې یې وکاروي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۸۱–۸۰) مخونو کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي.

# سرلیک: د اوږدوالي اټکلی او دقیق اندازه کول

**یو دیرشم لوست، (۸۲) مخ**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** د زده کوونکو حدس او اټکل په اندازه کولو کې وده کوي او حقیقت ته نږدې کیږي.

**اصطلاح ګاني:** حدس، اټکلی، په دقیق توګه اندازه کول.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، د متر فیته، یوه متره لښته او نور محیطی مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده وګورئ چې هغوی ترلي او خلاص شکلونه رسم کړي دي او که نه؟ هغه چا چې شکلونه غلطه کړي وي. یا یې رسم کړي نه وي. صحیح شکلونه دې پرتخته ورته رسم شي. او نورو ته دې وویل شي چې بیا بې پروایي ونکړي او کورنۍ دنده سرته ورسوي او هغه چا چې خلاص او ترلي شکلونه په صحیح توګه رسم کړي دي تشویق دې شي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وویشی او بیا لاندې جدول پر تخته رسم کړئ:

**( ) ګروپ**

| شمیره | نوم | د پلار نوم | اټکلی اندازه | دقیق اندازه |
|---|---|---|---|---|
| | | | | |
| | | | | |
| | | | | |

زده کوونکو ته ووایاست چې د تختې د مخ جدول په خپل ګروپونو کې رسم کړئ او د خپل ګروپ نومونه ولیکئ.

– ښاغلی ښوونکی دوه نقطې د (ن م) د تختې په مخ باندې په نښه کړئ. زده کوونکو ته ووایاست د دوو نقطو ترمنځ فاصله په اټکلی توګه وټاکئ چې څو سانتي متره کیږي او بیا د خپل نوم مخامخ ته د تخمین د اندازې تر لاندې په اړوند ځای کې ولیکئ. او بیا له هر ګروپ

څخـــه یو، یو تن د ټـــولګي مخـــې ته را وغواړي چې د (ن م) نقطو تر منځ فاصله په دقیقه توګه د خط کش په واسطه اندازه کړي او نور زده کوونکی دې د فاصلې دقیق اندازه د خپلو ګروپونو په جدول کې ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست خپل ډک کړي جدول ته په غور سره وګورئ. چې کوم زده کوونکو په ترتیب سره حقیقت ته نږدې اټکل کړی ده، په ترتیب سره دې نومونه ولیکل شي. او جدول دې د ټولګي په دیوال او یا پرتخته ونښلول شي. زده کوونکی دې جدول ته وګوري په خپله دې لومړی، دویم او دریم ګروپونه وټاکي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست چې د خپل کتاب (۸۲) مخ خلاص کړی. هغه قطعه خطونه چې په کتاب کې رسم شوي دي. لومړۍ په تخمیني ډول د هغو اندازې ولیکئ او وروسته یې د خط کش په واسطه اندازه

## یو دیرشم لوست: د اوږدوالي اټکلي او دقیق اندازه کول

هدف: د زده کوونکو په اټکلي اندازه کولو کې پیاوړتیا پیدا کړی چې څومره حقیقت ته نژدي دي.

لومړی د لاندې هر یوه قطعه خط اندازه تخمین کړئ او بیا د هر یوه اوږدوالی دخط کش په واسطه اندازه کړئ او په غور سره وګورئ چې ستاسو تخمین واقعیت ته تر کومه حده نږدې دی؟

د درکړل شوو قطعه خطونو د اټکلی او دقیق اندازه کولو وروسته مخامخ جدول بشپړ کړئ.

| توټه خطونه | اټکلی اندازه | دقیق اندازه |
|---|---|---|
| ب الف | | |
| د ج | | |
| ن م | | |
| هـ و | | |
| ك ل | | |
| ز ر | | |

الف ——— ب

ج ——— د

م ——— ن

و ——— هـ

ل ——— ک

ر ——— ز

ځواب: د زده کوونکو په واسطه دې حل شي.




زده کوونکي دې د پورتنیو قطعه خطونو اوږدوالی په نظر کې ونیسي. له اوږده قطعه خط څخه دې د لنډ قطعه خط خواته ترتیب او ولیکي.

ځواب: ن م، د ج، ک ل، الف ب، ز ر



کړئ او په یوه جدول کې ولیکی خپل ترتیب کړئ جدولونه په دیوال باندې ونښلوئ ترڅو ټول زده کوونکي جدولونو ته وګوري او پرتله یې کړي چې کوم ګروپ دقیقي اندازي ته نږدې دی.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ تر لاسه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ( د •————————• ج) ټوټه خط فاصله لومړۍ په اټکلی توګه وایې او بیا په دقیقه توګه اندازه کوي څوک وایې چې اټکلی اندازه حقیقت ښیې او که دقیقه اندازه؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي د لاندې ټوټه خطونو اټکلی اندازې په جدول کې ولیکي او بیا یې دقیقه اندازه ولیکي.

ا ——————— ب، ج——————— د، هــ ——————— و

**ذهنیت:**

– د اټکلی او دقیق د توپیر په پیژندلو او پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون او وده کوي خوښي شکاره کوي.

**ارزښت:**

– د اټکلی او دقیق پرتله د زده کوونکو فکر ته پراخوالي ورکوي. هغوی کولی شي د اړتیا په وخت کې ځنې فاصلي یا د ځینو شیانو بیه چې په اټکلی ډول حقیقت ته نږدې وي وښیي. او له دي لارې د اندازو له وسایلو پرته خپلې ستونزې حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي د کتاب د (۸۲) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي.

# سرلیک: اټکلي او دقیق اندازه کول

**یو دیرشم لوست، (۸۳) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** د زده کوونکو حدس او اټکل په اندازه کولو کې وده کوي او حقیقت ته نږدي کیږي.

**اصطلاح ګانې:** حدس، اټکل، اندازه کول، دقیق.

**د لوست مرستندوی مواد:** خط کش، متر، فیته، تار، لښته او نور محیطی مواد.

**۱- فعالیتونه:**

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وویشئ. د زده کوونکو کورنۍ دنده دې د ګروپ د غړو په واسطه ولیدل شي هغو زده کوونکو چې اشتباه کړي ده، نومونه دې پرتخته ولیکل شي بیا دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د ګروپ د غړو په واسطه پیدا شي. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه پرتخته تشریح کړي.

- ښاغلی ښوونکی! څلور تنه زده کوونکي چې قدونه یې مختلف اوږدوالی ولري یعنی مساوی نه وي د ټولګی مخې ته ودروئ. او نورو زده کوونکو ته وواياست د دې څلور تنو زده کوونکو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ. او د هر یوه له نامه سره د هغو د قد اوږدوالی اټکل او ولیکئ. بیا دې ښاغلی ښوونکی یوه زده کوونکي ته دنده ورکړي چې د هر یوه قد د متري فیتې په واسطه په دقیق توګه اندازه کړي او د هغو د هر یوه د قد اندازه دې اعلان کړي. چې هر زده کوونکي د اټکلي اوږدوالي لاندې، د هغه د قد دقیق اوږدوالی ولیکي. ښاغلی ښوونکی دې د ټولو زده کــوونــکو له کار څخه لیدنه وکړي که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه دې وکړي. په پای کې دې ګروپونه په خپل منځ کې خپل کارونه یو له بله سره پرتله کړي. د هر یو زده کوونکي اټکل چې حقیقت ته نږدې وي په ترتیب سره دې نومونه ولیکي بیا دې ښاغلی ښوونکی د دري واړو ګروپونو کارونه یو له بله سره پرتله کړي د هر ګروپ کار چې حقیقت ته نږدې دئ هغه دې اعلان کړي.

- ښاغلی ښوونکی! که چیرې متري فیته نه وي نو زده کوونکو ته وواياست چې د تار په واسطه یې اندازه کړئ بیا تار په خپل میزونو باندې په مستقیم توګه کښیږدئ او د خپل خط کش په واسطه یې اندازه کړئ. ښاغلی ښوونکی! که چیرې زده کونکي ستونزي ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۲- مشق او تمرین:**

- ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۸۳) مخ ته را وګرزوئ ورته وواياست چې خپل کتاب خلاص کړي. د هغه مخ د مشق او تمرین پوښتنې په دقت سره مطالعه کړي د هدایت سره سم جدول ډک او بشپړ کړي.

مشق او تمرین

لاندې جدول ته پاملرنه وکړئ هر ګروپ دې د لاندې جدول په ډول یو جدول رسم کړي، د ګروپونو د یوه، یوه زده کوونکي اندامونه دې د مثال په توګه لومړی اټکل او وروسته دې په دقیقه توګه اندازه کړي.

| د هر ګروپ د زده کوونکو نومونه | د تنې اندازه | |
|---|---|---|
| | تخمینی | دقیق |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |

هر ګروپ دې د اړوند جدول د بشپړولو وروسته په خپله د ګروپ زده کوونکي پرتله کړي چې د کوم یوه زده کوونکي اټکل حقیقت ته ډیر نژدی دی. او هغه دې یادداشت کړي او بیا دې لومړی تن د هر ګروپ سره پرتله شي په ګروپونو کې دې لومړی، دویم او دریم معلوم کړي او ممتاز زده کوونکي دې پیدا کړي.

کورنۍ دنده

د خپل د کور د یو کوټې چاپیریال د خپل قدمونو په واسطه تخمین او بیا دې په دقیق توګه اندازه کړی. د متر په واسطه توپیر یې ولیکی.

ځواب: د زده کوونکو کار دی.

۸۳

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک د (د ——— ج) د ټوټه خط اوږدوالی تخمین او حقیقت ته نږدې ټاکي؟
- څوک د ټولګی اوږدوالي اټکل او حقیقت ته نږدي ټاکي؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي مخ کې له دقیق اندازې څخه د فاصلو اوږدوالی چې حقیقت ته نږدې وي تخمین کړي.
- د ټولګی اوږدوالی لومړی اټکلی اوږدوالی بیا دقیق اوږدوالی پیدا او پرتله کړای شي.
- د ټولګې د سور او د میز اوږدوالی لومړی په اټکلی توګه او بیا دقیق اوږدوالی پیدا او پرتله کړای شي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي مخ کې له دقیق اندازې څخه د فاصلو اټکلی اندازه ټاکې کله چې دقیق یا حقیقي اندازې ته نږدې وي نو ذهن بدلون مومي په ځان باور پیدا کوي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

تخمین کول د زده کوونکو ذهن ته وده ورکوي هغوی کولی شي له وسائلو پرته د کور او ښوونځی تر منځ فاصله، د خپل کور او ګاونډې تر منځ فاصله، د وخت ټاکل او داسې نور په اټکلی توګه چې حقیقت ته نږدې وي وټاکي د ځان او یا نورو ستونزې حل کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی: زده کوونکي دې (۸۳) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي او سبادې له ځانوسره راوړي.

# سرلیک: د مربع، مستطیل او مثلث د محیط پیدا کول

**دوه دیرشم لوست، (۸۴ ، ۸۵) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي محیط د یوه تړلی شکل ټولې برخې د محیط په مفهوم وپیژني د مربع، مثلث او مستطیل محیط اندازه کړای شي.

**اصطلاح ګاني:** محیط، مربع، مستطیل، مثلث، خواوي.

**د لوست مرستندوی مواد:** تار، متري فیته، خط کش او نور محیطی مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشی. د هر زده کوونکی د (۸۳) مخ کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي. ښاغلی ښوونکی دې وګوري چې کوم زده کوونکي کورنۍ دنده په صحیح توګه سرته رسولي ده، چا اشتباه کړي ده او چا هیڅ سرته رسولي نه دي؟ زده کوونکي دې تشویق شي چې په راتلونکي کې خپلي کورنۍ دندې سرته ورسوي بیا دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. ستاسو د ریاضي کتاب څو خواوي (څنډې) لري. ښايي چې زده کوونکي ووایي ۴ خواوي (څنډې)، بیا پوښتنه وکړئ څو خواوي اوږدې او څو يې لنډې دي؟ هغوی به ځواب ووایې دوه خواوي اوږدې او دوه يې لنډې دي. لنډې خواوي د څه په نامه یادیږي (ځواب د بر په نامه)، اوږدې خوا وي د څه په نامه یادیږي. (ځواب د اوږدوالي په نامه). کله چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې اوس زده کوونکي د خواوو یا ضعلو (اوږدوالی او بر) په مفهوم پوه شوي دي. نو لومړي ګروپ ته دې دنده ورکړي چې د درې د کتاب خواوي، دویم ګروپ دې د ریاضي د کتاب خواوي او دریم ګروپ دې د علوم دینی د

**دوه دېرشم لوست: د مربع، مستطیل او مثلث د محیط پیدا کول**

**هدف:** زده کوونکي د مربع، مثلث او مستطیل محیط اندازه کړای شي

**لاندې شکل ته پاملرنه وکړئ:**




پورته شکل یو تړلی شکل دی که چیرې د (۱) له ټکي څخه وخوځیږو او د هغه په ټولو ضلعو باندې په ترتیب سره ولاړ شو او بیا د (۱) ټکي ته راورسیږو په حقیقت کې د مستطیل ټولو ضلعو فاصله مو وهلې ده چې دا د مستطیل محیط بلل کیږي.

څرنګه چې د مستطیل مخامخ ضلعې یو له بله سره مساوي دي. نو د نوموړي مستطیل د ضلعو مجموعه ۱۲ سانتي متر=۲+۴+۲+۴ کیږي.

په دې صورت کې د راکړل شوي مستطیل محیط ۱۲ سانتي متره دی. څرنګه چې مربع هم ۴ مساوي ضلعې لري نو د مربع د څلورو واړو ضلعو داوږدوالو مجموعه د هغې محیط بلل کیږي او همدارنګه د مثلث د درې واړو ضلعو داوږدوالو مجموعه د هغه د محیط څخه عبارت ده.




کتاب خواوي د خط کش په واسطه اندازه کړي او د ورکړل شویو کتابونو د څلورو خواوو د اوږدوالي مجموعه دې پیدا کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست. اوس چې هر ګروپ د اړوند کتاب د خواوو (اضلاعو) مجموعه پیدا کړه. څوک ویلای شي د خواوو (اضلاعو) دا مجموعه د څه شي په نامه یادیږي که چیري یو زده کوونکی مثلاً فهیم ووایې د محیط په نامه یادیږي. ښاغلی ښوونکي دې فهیم تشویق کړي او نورو زده کوونکو ته دې ووايي. هر یو د تاسو باید وپوهیږي چې د یوه تړلي شکل شا او خوا د هغه د محیط په نامه یادیږي.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي، مستطیل څو ضلعې لري؟ مربع څو ضلعې لري؟ مثلث څو ضلعې لري؟ کله چې له زده کوونکو څخه صحیح ځواب په لاس راشي له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي.

– څوک کولی شي د مربع د ۴ ضلعو، د مستطیل د (۴)

ضلعو او د مثلث د درېو ضلعو مجموعه پيدا کړي او
ووايي چې دا مجموعه د څه شي په نامه ياديږي ښايي چې
ځنې زده کوونکي ووايي د محيط په نامه ياديږي. که
چيري ونشي ويلای. ښاغلی ښوونکی دې ورته ووايي، د
هر يوه د اضلاعو مجموعې ته محيط وايي. يعنی د مربع د
ضلعو مجموعه د مربع محيط، د مستطيل د اضلاعو
مجموعه د مستطيل محيط او د مثلث د ضعلو مجموعه د
مثلث محيط بلل کيږي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د
خپل کتاب (۸۴) مخ خلاص کړي او له هدايت سره سم
نوموړی مخ مطالعه کړي. که چيري زده کوونکي له
ستونزو سره مخامخ کيږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۲– مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۸۵) مخ ته
را وګرزوی ورته ووایاست چې ټول زده کوونکی دې د
(۸۵) مخ (۱) ګڼه پوښتنه په خپل ګروپونو کې حل کړي.
ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو له کار څخه ليدنه کوي. د
ستونزو په صورت کې دې مرسته او لارښوونه وکړي. بيا دې
د دې مخ (۲) او (۷) ګڼې پوښتنې لومړۍ ګروپ ته، (۳) او
(۵) ګڼې پوښتني دويم ګروپ ته، او همدارنګه د (۴) او (٦)
ګڼې پوښتني دريم ګروپ ته ورکړی چې حل يې کړي.
له حل کولو وروسته له هر ګروپ څخه دې يو، يو تن د
خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړوته تشريح کړي. که
چيري زده کوونکي ستونزي ولري. ښاغلی ښوونکی دې
مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده
کوونکو نوی لوست زه کړی دی او که نه؟ له زده
کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په
صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د خپل ټولګی محيط ښيي؟
– څوک د تختې محيط ښيي؟

پوښتنې:

۱- په لاندې مستطيل کې د دوو ضلعو اوږدوالی درکړل شوی دی، د دوو نورو ضلعو اوږدوالی اندازه کړئ او محيط يې په لاس راوړئ.

۵ سانتي متره
۳سانتي متره
۳سانتي متره
۵ سانتي متره

ځواب: ۱٦ = ۳ + ۵ + ۳ + ۵ سانتي متره

۲- که چيرې د يوې مربع هره ضلعه ۱۲ سانتي متره وي د نوموړې مربع محيط پيدا کړئ. ځواب: څرنګه چې د مربع ۴ واړه ضلعې سره مساوی دي ۴۸=۱۲+۱۲+۱۲+۱۲

۳- که چيرې د يوه ټولګي اوږدوالی ۸ متره او سور يې ۴ متره وي محيط يې پيدا کړئ. ځواب: ۲۴ متره = ۴+۸+۴+۸

۴- د يوې مربع محيط چې د هرې ضلعې اوږدوالی يې ۴ سانتي متره دی د هغه مستطيل له محيط سره يې پرتله کړئ چې اوږدوالی يې ٦ سانتي متره او سور يې ۲ سانتي متره وي؟

ځواب: ۱٦ سانتي متر = ۴+۴+۴+۴ د مربع محيط، ۱٦ سانتي متر = ۲+٦+۲+٦ د مستطيل محيط يو له بله سره مساوي دي.

۵- که چيرې د يوه مستطيل شکلي بڼ اوږدوالی ۳۵۰ متره او سور يې ۲۳۰ متره وي څو متره اغزن سيم ته اړتيا ده تر څو د محيط (چاپيريال) وتړي. ځواب: ۱۱٦۰ متره = ۲۳۰+۳۵۰+۲۳۰+۳۵۰

۶- د هغه فرش محيط پيدا کړئ داسې يوه کوټه چې اوږدوالی يې ۴ متره او سور يې ۳ متره وي فرش کړئ او په کار يووړل شي؟
ځواب: ۱۴ متره = ۳+۴+۳+۴

۷- د خط کش او خپل قايمې جوړې کړې زاويې په کارولو سره يوه مربع رسم کړئ چې د هري ضلعې اوږدوالی يې ۵ سانتي متره وي او محيط يې پيدا کړی.

کورنۍ دنده

د کاغذ له يوې پاڼې څخه يو مستطيل پريکړئ چې اوږدوالي يې ۷ سانتي متره او سور يې ۳ سانتي متره وي د نوموړی مستطيل محيط حساب کړی.

۸۵

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړائ شي د منظم هندسي شکلونو محيط
اوږدوالی پيدا کړي.
– زده کوونکي وکړای شي د يوه تړلي شکل شا او خوا د
محيط په مفهوم وپيژني.

**ذهنيت:**

د محيط د مفهوم په پوهيدلو سره د زده کوونکو ذهن
بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د محيط پيژندل د زده کوونکو له پاره ډير ارزښت لري په ورځني
ژوند کې د شيانو د محيط د اوږدوالي د اندازه کولو له پاره کار
ورڅخه اخلي. کولای شي د کور، ښوونځی، حويلی، ټولګي او
نورو محيط اندازه کړي د ځان او نورو ستونزي حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دي د (۸۵) مخ کورنۍ دنده د کتاب له
هدايت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د مربع، او مثلث د محیط (چاپېریال) پیدا کول

**دوه دیرشم لوست، (۸٦) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي محیط د یوه تړلي شکل د ټولې برخې (چاپیریال) د محیط په مفهوم وپېژني. د مربع، مثلث او مستطیل محیط اندازه کړای شي.

**اصطلاح ګانې:** محیط، مستطیل، مربع، مثلث، محیط (چاپیریال).

**د لوست مرستندوی مواد:** متری فیته، خط کش، تار، لښته او نور محیطی مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو وویشئ. د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي او وګورئ هغه مستطیل چې زده کوونکو له کاغذ څخه قیچی کړی ده، اوږدوالی او بر یې په دقیق توګه صحیح دی او که نه؟ که چیرې زده کوونکو دنده په دقیق توګه سرته رسولی نه وي. یعنی اشتباه یې کړی وي. اشتباه دې د زده کوونکو په واسطه صحیح شي. ښاغلی ښوونکی د ګروپی کارونو څخه لیدنه کوي که چیری زده کوونکي ستونزي ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! د لومړی ګروپ زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د خپل میز محیط پیدا کړي. دویم ګروپ دې د څوکۍ محیط او دریم ګروپ دې د ټولګی محیط پیدا کړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیری زده کوونکي له کومې ستونزي سره مخامخ کیږي ښاغلی

۷- په لاندې شکل کې څو مستطیل او څو مثلثونه دي د اضلاعو د هري یوي اوږدوالی اندازه کړئ محیطونه یې معلوم کړئ.

خواب: یو مستطیل چې محیط یې ۱۴ سانتی متره دئ.
دوه مثلثونه دې چې د هر مثلث محیط ۱۲ سانتی متره دئ.

۸- په لاندې شکل کې د (ز) او (ح) ټکی او همدارنګه د (هـ) او (و) ټکی یو له بل سره ونښلوي.

ا ح ۹ سانتی متر و ب
۳ سانتی متر
د ز هـ ج

الف: څو مستطیلونه او څو مربع ګانې لیدلای شي؟
خواب: دری مستطیلونه او دری مربع ګانې لیدل کیږي.
ب: د هر یوي مربع محیط معلوم کړي؟
خواب: د هری مربع محیط ۱۲ سانتی متره کیږي.
ج: د هر یوه مستطیل محیط معلوم کړئ.
خواب: د دوه مستطیلونو هر یوه محیط ۱۸ سانتی متره او د یوه مستطیل محیط ۲۴ سانتی متره کیږي.

کورنی دنده

که چېرې د یوه مثلث اضلاعوې په ترتیب سره ۳، ۷ او ۵ سانتي متره وي د هغه محیط پیدا کړئ.
خواب: ۱۵ سانتی متره = ۳ سانتی متره + ۷ سانتی متره + ۵ سانتی متره

۸۶

ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲ – مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۸٦) مخ ته را واړوي د دې مخ (۸) او (۹) شمیرې پوښتنې دې وګوري او بیا دې په ګروپونو کې حل کړي. ځوابونه دې پیدا کړي. سبا دې ګروپونه په خپل منځ کې ځوابونه یو له بله سره پرتله کړي. وګوري چې کوم ګروپ په دقیق توګه صحیح کار سرته رسولی دی.

**۳ – ارزونه:**

د دې لــه پاره چــې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شــي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د خپل ټولګی محیط ښیې؟

– څوک وایې کومو خواوو ته محیط وایې؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي د متر په واسطه لاندې محیطونه پیدا کړي.

– د خپل ټولګي محیط متر کړي او محیط یې پیدا کړي چې څو متره کیږي.

– د تختې محیط اندازه او پیدا یې کړي.

– د خپل میز محیط اندازه او پیدا یې کړي.

**ذهنیت:**

د محیط د اندازه کولو او پیدا کولو په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

په محیط پوهیدل او اندازه کول د زده کوونکو په ورځنۍ ژوند کې ډیر ارزښت لري که چیرې هغوی وغواړي له خپل بڼ او پټیو څخه اغزي لرونکی سیم را تاو کړي د محیط په پوهیدو سره کولی شي د اړتیا وړ اغزي لرونکی سیم اندازه معلومه کړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۸٦) مخ کورنۍ دنده سرته ورسوي او سبا ته دې راوړي.

# سرلیک: د کتلې د اندازه کولو واحد (کیلوګرام)

**دري دیرشم لوست، (۸۷) مخ**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**هدف:** زده کوونکي د کتلې د اندازه کولو بین المللي واحد وپیژني او په ورځني ژوند کې کار ورڅخه واخیستلای شي.

**اصطلاح ګانې:** وزن، کیلوګرام، واحد، اندازه کول.

**د لوست مرستندوی مواد:** د ډېرو وړې ټوټې، لرګی، خښته، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، د کیلوګرام وزن.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو باندې وویشل شي. د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو په واسطه ولیدل شي. کومې اشتباه ګانې چې د زده کوونکو په واسطه په ګوته کیږي. پرتخته دې ولیکل شي. بیا دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه تشریح شي د اشتبا ګانو په برخه کې دې زده کوونکو ته لارښوونه وشي.

– ښاغلی ښوونکی دې د لومړۍ ګروپ زده کوونکو ته یوه دانه قلم او یو خط کش، د دویم ګروپ زده کوونکو ته یوه کتابچه او یو کتاب، همدارنګه د دریم ګروپ زده کوونکو ته یو پنسل او یوه وړه ډبره ورکړي او هر ګروپ دې دوه شیان په خپلو لاسونو کې ونیسي. بیا دې ووایي چې کوم یو یې زیات وزن لري او کوم یو یې لږ وزن لري د هغو نومونه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي، د زیات او لږ وزن دې د هغو مخې ته ولیکي. ښاغلی ښوونکی دې له ګروپونو څخه لیدنه کوي که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي. همدارنګه ښاغلی ښوونکی دې دوه ټوټې ډبرې چې مختلف وزن ولري د ټولګي مخې ته کښیږدي چې په عملي توګه یې ټول زده کوونکي ولیدلای شي. او هر زده کوونکی دې هغه په خپلو لاسونو سره پورته کړي، چې ټول زده کوونکي په

# لسم فصل

## د کتلې، وخت او مایعاتو اندازه کول

**دري دیرشم لوست: د کتلې د اندازه کولو واحد (کیلوګرام)**

هدف: زده کوونکي د کتلې د اندازه کولو بین المللي واحد وپیژني او په ورځني ژوند کې ورڅخه کار واخستلی شي.

د تلې شکل ته چې د هغې په پلو کې منې او د کیلوګرام وزنونه ایښودل شوي دي پاملرنه وکړئ.




**کیلوګرام:** د دې له پاره چې د کتله لرونکو شیانو پلورل را نیول په زیرتیا سره وشي. له هغو وزنونو څخه کار اخیستل کیږي. چې د ټولو د پاره پیژندل شوي دي. چې د دې ډېر نامتو وزن ۱ کیلو ګرام دی. چې په مخامخ شکلونو کې یې ښه لیدلی شئ.

د ۱ کیلو ګرام څخه لوی وزنونه یعنې ۲ کیلوګرامه، ۵ کیلوګرامه، ۱۰ کیلوګرامه او ۲۰ کیلوګرامه دې هم د کار اخېستلو وړ دي او کار ورڅخه اخلي. د ډېرو کوچنیو شیانو داندازه کولو د پاره د کوچنیو وزنونو څخه چې هغه هم پیژندل شوي دي کار اخېستل کیږي.




زیات او کم وزن باندې پوه شي.

– ښاغلی ښوونکی د ګروپونو زده کوونکو ته د ډبرو ټوټې، خښته او لرګې چې له تاسو سره شته او هر یو یې یو کیلوګرام وزن ولري ورکړي. او ورته وواياست. دا شیان په وار سره په خپل لاسونو کې واخلي او پرتله یې کړي وواياست چې کوم یو یې زیات وزن لري او کوم یو یې کم وزن لري. ښایي چې زده کوونکي د جسمونو د لوی والي له مخې ووایي د لرګی وزن زیات دی.

– بیا دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي د دې له پاره چې مونږ وکولی شو د پورته شیانو اندازه په دقیقه توګه پیدا کړو څه وکړو؟ ښایي چې زده کوونکي مختلف ځوابونه ووایي.

– وروسته له دې چې ښاغلی ښوونکی ځوابونه واوري، زده کوونکو ته دې ووایي تاسو په بازار کې له هټیوال څخه (غوښه، بوره او پټاټې) را نیسئ. هټیوال هغه د څه شي په واسطه وزن کوي (ځواب پاو، خورد، چارک، سیر،

کیلوګرام).

– ښاغلی ښوونکی! د پورته فعالیتونو وروسته، تیار شوي شیان لکه ډبرې، لرګي او خښتې، د تلي په واسطه په عملي توګه وتلي او پرتله يې کړي. تر څو زده کوونکي ډاډه شي چې ټول پورتني شیان عینی یعني مساوي وزن (دروند والی) لري.

– بیا دې ښاغلی ښوونکی یو کیلو ګرامه وزن زده کوونکو ته په لاس کې ورکړي چې د خپل ګروپ شیان وزنونه له هغه سره پرتله کړي. چې ټوله زده کوونکي ډاډمن شي، (ډبره، خښته او لرګی) چې مخ کې هم تاسو اندازه کړي وو، یو کیلوګرام دي. زده کوونکو ته دې وویل شي. د دې له پاره چې په ټولو ځایونو کې یو شئ وي یو ثابت وزن ټاکل شوی دی. له دې ثابت وزن څخه کار اخلو چې هغه د یوه کیلوګرام په نامه یادیږي او په ټولو هټیو کې موجود ده. او جنسونه یا شیان د هغه په واسطه اندازه کوي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست. د خپل کتاب (۸۷) مخ ته پام وکړی او مطالعه يې کړی ترڅو له یوه کیلوګرام سره ښه پیژندګلوي پیدا کړي. که چیرې زده کوونکي ستونزي ولري مرسته ورسره وکړئ.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړئ.

**پوهه:**

– څوک وایې چې د پلورلو او رانیولو په وخت کې له کوم وزنو څخه کار اخستل کیږي چې ټول يې وپیژني؟

– څوک وایې له کیلوګرام پرته له بل کوم وزن څخه هم کار اخیستل کیږي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي په رانیولو او پلورلو کې له کیلوګرام څخه کار واخلي.

– زده کوونکي وکړای شي له کیلوګرام څخه کوچني واحدونه وپیژني او د شیانو وزن پیدا کړي.

**ذهنیت:**

د کیلوګرام په پیژندلو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د کیلوګرام پیژندنه د زده کوونکو په ژوند کې ارزښت لري زده کوونکی کولاي شي په پلورلو او رانیولو کې د کیلوګرام له بین المللی وزن څخه کار واخلي یعنی د شیانو له پاره له دې ثابت وزن څخه کار واخلي.

**۴– کورنی دنده:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې له ختې، ډبري او یا د محیطی له نورو موادو څخه کیلو ګرام جوړ کړي او له ځانو سره يې راوړي.

## سرلیک: د وزن د اندازه کولو واحد (کیلوګرام)

**دري ديرشم لوست (۸۸، ۸۹) مخونه**

**دويمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د وزن د اندازه کولو واحد (۵۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه، ۵۰۰ ګرامه او يو کیلوګرام) وپیژني او په ورځني ژوند کې کار ورڅخه واخيستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** ۵۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه، ۵۰۰ ګرامه، يو کیلوګرامه.

**د لوست مرستندوی مواد:** د ۵۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه، ۵۰۰ ګرامه او يو کیلوګرامه وزنونه.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنی دنده وګورئ.
د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې له کیلوګرام سره پرتله شي. چې کوم يوه زده کوونکي په دقيق توګه کار کړی دی. که چيرې زده کوونکو اشتبا وي کړي وي د اشتباه ګانو صحيح ځوابونه دې ورته وويل شي. د زده کوونکو ستونزې دې حل او لارښوونه دې ورته وشي.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي.

– کوم يو د تاسو د خپل کور له پاره له بازار څخه سودا را نیسي؟

– څوک هتۍ لري او سودا په کې پلوري؟

– څوک پوهیږي چې هیټوال (پیاز، پټاټې، مالګه او نور شیان) په کوم وزن سره تلې؟

– کله چې ښاغلی ښوونکی د پورتنیو پوښتنو ځوابونه له زده کوونکو څخه واوري، له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي. که چیرې تاسو وزنونه ونه پیژنۍ څه ډول پوهیږي چې هیټوال تاسو ته د اړتیا وړ مواد صحیح تللي دي یعني تاسو ته یې معین مقدار درکړی دی او که نه؟ د دې له پاره چې په پلورلو او رانیولو کې اشتباه ونکړئ. څه

لاندې شکلونو ته پاملرنه وکړئ. ډېر درانه او ډېر سپك وزنونه په ترتیب سره په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

ځواب: ۵۰۰ ګرامه، ۲۰۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه، ۵۰ ګرامه، ۲۰ ګرامه، ۱۰ ګرامه، ۱ ګرامه




زده کوونکي: ښاغلی ښوونکی! ګرام څه شی دی؟

ښوونکی: ۱ ګرام په تقریبي ډول د ۱۰ عدسو (نسکو) په اندازه دی.

زده کوونکی: ښاغلی ښوونکی! نو ۱ کیلو ګرام څو ګرامه دی؟

ښوونکی: ګرانو زده‌کوونکو! باید پوه شئ چې ۱ کیلو ګرام مساوي لـه ۱۰۰۰ ګرامه سر




د ګروپونو هر يو زده کوونکی دې د پورتنیو وزنونو په ډول، دوه، دوه وزنونه له ختمو څخه جوړ او سباته دې ټولګی ته راوړي.




باید وکړي؟

– ښايي چې ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه مختلف ځوابونه واوري. خو په پای کې دې زده کوونکو ته ووايي. لازم ده هغه وزنونه چې تاسو د هغو په واسطه سودا اخلئ وپیژنۍ هغه څوک چې وزنونه پیژني خپل لاسونه دې جګ کړي. ځنی زده کوونکي مثلاً احمد خپل لاس پورته کوي داسې وايي: (۵۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه، ۵۰۰ ګرامه او يو کیلوګرامه).

– ښاغلی ښوونکی دې (۵۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه، ۵۰۰ ګرامه او يو کیلوګرامه) وزنونه چې پخوا يې تيار کړي دي زده کوونکو ته دې ورکړي. چې په خپل ګروپونو کې وزن کړي. او وګوري.

– د امکان په صورت کې که چیرې تله وي. او هغه وزنونه په عملي توګه وتلل شي او هغوی يې ووينی ښه به وي. همدارنګه هغوی ته اجازه ورکړئ چې خپلې کتابچې او کتابونه هم د تلې په واسطه وتلي او وزنونه يو له بله

سره پرتله کړي. ښه به شي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې د خپل کتاب (۸۸) مخ خلاص او مطالعه کړي هغه وزنونه چې له دوی سره شته، د کتاب د شکلونو سره يې په ډير غور سره پرتله کړي ترڅو وکولی شي د شکلونو په ليدلو سره له ختيو څخه (۵۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه او ۵۰۰ ګرامه) وزنونه جوړ کړي.

**۲– مشق او تمرين:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۸۹) مخ ته را وګرزوئ. له لارښووني وروسته دې (۱) او (۲) پوښتنې په خپل ګروپونو کې حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار له جريان څخه مراقبت وکړي که چيرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کيږي مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ تر لاسه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغه سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څو ک د وزنو په کارولو سره (۶۰۰ ګرامه) ښيي؟

– څوک د وزنو په کارولو سره يو کيلوګرام وزن ښيي؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي د (۵۰ ګرامه، ۱۰۰ ګرامه او ۵۰۰ ګرامه) وزنو په کارولو سره لاندې پوښتنې حل کړي.

? = ۵۰۰ ګرامه + ۵۰۰ ګرامه

? = ۵۰ ګرامه + ۱۰۰ ګرامه + ۱۰۰ ګرامه

**ذهنيت:**

د کيلوګرام او ګرام په پيژندلو سره زده کوونکی کولی شي څو ګرامه سره جمع کړي د وزن مجموع په لاس راوړي د دې کار په کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي خوښي کوي.

مشق او تمرين

۱- که چېرې د ۱ کيلو ګرام وزن ونه لرې څرنګه کولي شې د نورو وزنونو په کارولو سره يو کيلو ګرام منې اندازه کړئ؟

ځواب: د دوه (۵۰۰) ګرامه څخه کار اخلو.

۲-د >،-او < نښو څخه کار واخلئ تش ځايونه په مناسب نښه سره ډك کړئ؟

| | | |
|---|---|---|
| ۵ کيلو ګرامه | = | ۵۰۰۰ ګرامه |
| ۵۰۰۰ ګرامه | < | ۱۰۰ ګرامه+ ۲۰۰ ګرامه+۴۰۰ ګرامه |
| يو ۵۰ ګرامه او دري ۲۰ ګرامه | < | ۱۰۰ ګرامه |
| ۵۰۰ ګرامه | = | نيم کيلو ګرامه |
| ۵۰۰ ګرامه | < | دوه ، ۲۰۰ ګرامه ، يوه ۵۰ ګرامه او درى ۱۰ ګرامه |
| ۷ کيلو ګرامه کچالو | = | ۷۰۰۰ ګرامه يوه بوجې پنبه |

۳-يو هټې وال د تلۍ په يوه پله کې د ۵ کيلو ګرام يو وزن او په بله کې يې يوه دانه هندوانه کېښودله ويې ليدل چې هندوانه سپکه ده . نو کله چې د تلې په بله پله کې يې د ۱ کيلو ګرام وزن کيښود تلې د تعادل حالت ونيولو وواياست چې د هندوانې دروندوالی څومره دی ؟

ځواب: ۴ کيلوګرامه وزن لرى.

کورنۍ دنده

زده کوونکی دې د قطيانو د نارنج، کدو له پلويا نورو شيانو څخه تله جوړه کړی او ټولګي ته دې راوړي .

ځواب: د زده کوونکو کار دى.

۸۹

**ارزښت:**

زده کوونکي د مختلف وزنو په پيژندلو سره کولای شي د پلورلو او رانيولو په وخت کې وزنونه وکاروي خپلې اړتياوې حل کړي او په دقيق توګه شيان وپلوري او يا راونيسي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (۸۹) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدايت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د وزن د اندازه کولو واحد (کیلوګرام)

**دری دیرشم لوست، (۹۰) مخ**

**دریمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د وزن د اندازه کولو واحد (کیلوګرام، تن) وپیژني.

**اصطلاح ګاني:** تن، وزن، کیلوګرام، اندازه کول.

**د لوست مرستندوی مواد:** د موټر رسم، د بار لرونکو موټرو تصویرونه په چارت یا فلش کارت کې او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. هغه تلي چې زده کوونکو پخوا تیار کړي دي په ګروپونو کې دې ترتیب شي. له ګروپونو څخه لیدنه وکړئ. د زده کوونکو وزنونه او تلي وګورئ. هغو زده کوونکو چې دقیق کار کړی دی. تشویق دې شي. او هغو زده کوونکو چې بې پروایي کړې ده په خاص صمیمیت او شفقت سره دې لارښوونه ورته وشي. چې په راتلونکی کې بې پروایي ونه کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې کوشش وکړي چې د تلو مختلف شکلونه پیدا کړي او زده کوونکو ته وښيي.

– ښاغلی ښوونکی! له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ:

– څوک کولی شي د تلو د مختلف ډولونو نومونه واخلي؟

– څوک ویلای شي بارلرونکي موټرونه لکه: ټانکر، د لرګیو موټر، د سکارو موټر، د ورو موټرونه د څه شي په واسطه اندازه کوي؟ (د فنري تلی په واسطه)

– ښاغلی ښوونکی! که چیرې کوم زده کوونکی د فنري تلي او یا قپان په برخه کې معلومات ولري ښه به وي له هغه پرته زده کوونکو ته وواياست ډېر درانه، درانه شیان د فنري تلي په واسطه اندازه کیږي.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي:

څو کیلو ګرامه؟
ډېر زیات درونډ په نظر نه راځي

**زده کوونکی:** ښاغلی ښوونکی ډېر درانده شیان د څه شي په واسطه اندازه کوي؟

**ښوونکی:** ګرانو زده کوونکو ډېر زیات درانده شیان لکه بار لرونکی موټرونه او نور د تن په واسطه اندازه کوي.

**زده کوونکی:** ښاغلی ښوونکی تن څه شئ دی؟

**ښوونکی:** یو کیلو ګرام مو وپېژندل باید پوه شئ چې ۱۰۰۰ کیلو ګرامه یو تن کیږي.

۱۰۰۰ کیلو ګرامه = ۱ تُن

۲۰۰۰ کیلو ګرامه = ۱۰۰۰×۲ = ۲ تُن

کورنی دنده

که چېري یو موټر د بار سره ۱۲۰ تن وزن ولري او د موټر وزن ۲۰ تن وي د موټر د بار وزن پیدا کړئ.

ځواب: ۱۰۰ تن = ۲۰ – ۱۲۰

۹۰

– څوک کولی شي ووایي چې ۱۰۰۰ کیلوګرامه څو ټنه کیږي؟ (ځواب: یو ټن).

– څوک کولی شي ووایي چې یو ټن څو کیلوګرامه کیږي؟ (ځواب: ۱۰۰۰ کیلوګرامه).

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۹۰) مخ ته را وګرزوئ چې د خپل کتاب مخ خلاص کړي او مطالعه یې کړي. بیا یوازې زده کوونکو ته داسی یو مفکوره ورکړئ چې په راتلونکی کې د ټن په برخه کې په ښه ډول معلومات پیدا کړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي. د ستونزو په

صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایې بارلرونکي موټر چې په غنمو، سکارو او وریجو بار وي د څه شي په واسطه اندازه کیږي؟

– څوک وایې یو ټن څو کیلوګرامه کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل او ځواب ووایې:

? کیلوګرامه = یو ټن، ? = ۱۰۰ ګرام + ۲۰۰ ګرامه + ۵۰۰ ګرامه

? ګرامه = ۱ کیلوګرام، ? = ۲۰۰ ګرامه + ۵۰ ګرامه + ٦۰۰ ګرامه

**ذهنیت:**

د ټن او کیلوګرام د مفهوم په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د ټن، کیلوګرام او ګرام پیژندل او په هغو سره پوهیدل د زده کوونکو له پاره ډیر ارزښت لري هغوی کولی شي لویو شیان، کوچنی شیانو هر یوه لپاره خپل اړوند واحد وکاروي خپلې ستونزې حل کړي او له نورو سره هم مرسته وکړای شي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (۹۰) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

## دوخت اندازه کولو واحد (ساعت)

**هدف:**
۱- زده کوونکي ساعت (گړۍ) د وخت د واحد په توګه وپيژني،



**د ساعت (ګړۍ): پيژندنه**

که چيرې کوم وخت موساعت ليدلی وي د ساعت دايروی صفحه يا ابره په ۱۲ مساوي برخو ويشل شوی ده چې ددوو پرله پسې رقمو نو ترمنځ اړوندواټن يو ساعت را ښيي کله چې د ساعت ښوونکی عقربه ددووپرله پسې رقمونو ترمنځ واټن ووهي يو ساعت را ښيي، چې ددې وخت په اوږدوالي کي د دقيقې ښودونکې عقربه دساعت د ابرې بشپړه دوره وهي، ديوه ساعت دوخت او ږدوالي په ۶۰ مساوي برخو ويشلې ده چې هرې برخې ته دقيقه ويل کيږي او همدارنګه دهر دوو پرله پسې رقمونو ترمنځ واټن په پنځو مساوي برخو ويشل شوې ده چې هره برخه، يې يوه دقيقه را ښيي.

**په ټولګي کې د زده کوونکو فعاليت**

زده کوونکی دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي.

د کارك يا کاغذ په يوې ټوټې باندې دګيلاس يا پيالې په مرسته يوه دايره رسم کړئ ددې دايرې محيط په ۱۲ مساوي برخو وويشئ هره برخه په مسلسله توګه د ارقامو په واسطه، له (۱) څخه تر (۱۲) پوري وښياست دوه عقربې چې اوږدوالی يې يو له بله سره توپيرولري جوړې کړئ بيا دا عقربې ددايرې په مرکزکې د يوه سنجاق يا ستنې په واسطه ونښلوئ چې په حقيقت کې د يوه ساعت مودل مو بشپړکړی دی او د هغه په واسطه لاندې مختلف وختونه وښياست.

الف-۶بجې، ب- ۶ بجې او ۵ دقيقې، ج- ۷ بجی او ۱۵ دقيقې د-۴ بجې او ۳۰ دقيقې، هـ -آيا ويلای شئ چې ستاسو ښوونځی په څو بجو پيل کيږي



## څلور دېرشم لوست: دوخت ښودل د ساعت په واسطه

**هدف:** زده کوونکي ګړۍ وپيژني، د ګړۍ ښودونکی، دقيقه ښودونکی او ثانيه ښودونکی په موقعيت سره وخت تشخيص او ولوستلای شي.




د ساعت په يوه مخ باندې چې په عمومي توګه دايره وي شکل لري ۱۲ عددونه په معلومو ځايونو کې وينئ، د هرو دوارو عددونو په منځ کې ۵ واړه خطونه يا نقطې دي کوم وخت چې ثانيه ښودونکی له يوه عدد څخه پيل وکړي او يوه بشپړه دوره ووهي دقيقه ښودونکی له يوې نقطې څخه بلې نقطې ته رسيږي، ويل کيږي چې يوه دقيقه تيره شوې ده. که چيرې دقيقه ښودونکی له يوه عدد څخه په حرکت پيل وکړي د يوې بشپړې دورې وهلو وروسته يعنې له ۶۰ نقطو يا خطونو څخه تير شي چې په حقيقت کې ۶۰ دقيقې يا يو ساعت تير شوی دی په دې صورت کې د ساعت ښودونکی عقربه له يوه عدد څخه بل عدد ته رسيږي نو په دې صورت کې ليکلی شو چې:

۶۰ دقيقې = ۱ ساعت

۶۰ ثانيې = ۱ دقيقه






# سرليک: د وخت اندازه کولو واحد (ساعت)

**څلور ديرشم لوست (۹۱، ۹۲، ۹۳ او ۹۴) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي ګړی وپيژني، د ګړی ښودونکی، دقيقه ښودونکی او ثانيې ښودونکی په موقعيت سره وخت تشخيص او ولوستلای شي.

**اصطلاح ګاني:** ګړی، ګړی ښودونکی، دقيقه ښودونکی، ثانيه ښودونکی.

**د لوست مرستندوی مواد:** د مقوا کاغذ، د ګړی مودل، او ګړی.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وويشل شي. بيا دې د هر زده کوونکي کورنی دنده د اړوند ګروپ د غړو په واسطه وليدل شي. ښاغلی ښوونکی! پاملرنه وکړئ که چيرې زده کوونکو اشتباه کړې وي يا ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ. بيا دې ښاغلی ښوونکی لاندې پوښتنې وکړي:

**الف:** تاسو هر يو څه وخت له خوب وينبيږئ؟

**ب:** څه وخت د ښوونځي خواته روانيږئ؟

**ج:** ستاسو ښوونځی په څو بجو پيل کيږي؟

**د:** تاسو له ښوونځي څخه په څو بجو رخصت کيږئ؟

**ح:** که چيرې لمر نه وي يعنې وريځ وي څه ډول پوهيږئ چې د مازديګر د لمانځه وخت دی؟

**ط:** که چيرې آسمان وريځ وي. او سهار ناوخت وي له څه پوهيږئ چې لمونځ مو قضا شوی دی ؟

**ی:** د لمانځه پنځه وختونه له څه پوهيږی؟

**ک:** ستاسو د ښوونځي مشر د لوست د ساعت د بدلولو لپاره له څه شي څخه کار اخلي؟

**ل:** که چيرې په ګړی پوه نشی يا ګړئ ونه لری کولئ شي خپل د کار، د لوست وخت وپيژنئ؟

– ښاغلی ښوونکی کله چې زده کوونکي ځوابونه ووايي نو زده کوونکي په خپله دې نتيجې ته رسيږي چې ګړی يو ډير مهم با ارزښت شئ دی. چې شپه، ورځ، او نور وختونه د هغه په واسطه پيژندل کيږي.

– ښاغلی ښوونکی. د ګړی مودل د ټولګي مخې ته کښيږدئ د







که چېرې د الف شکل ګړۍ ته پاملرنه وکړئ لیدل کیږي چې دقیقه ښودونکی د ۱۲ د عدد مخامخ او ګړی ښودونکی د ۴ د عدد په مقابل کې قرار لري داسې لوستل کیږي چې ګړی ۴ بجې دي. اویا داسې ۴:۰۰.
اوس که چېرې دقیقه ښوونکی له ۱۲ څخه حرکت وکړي لکه د (ب) شکل د ۳ د عدد په مقابل کې قرار ونیسي د ګړی ښوونکی ځای هم د ۴ رقم څخه بدلون کوي په دې حالت کې ګړئ داسې لوستل کیږي له څلورو څخه پنځه لس دقیقې تیرې دي یا ۴:۱۵ یا پنځه لس پورته ۴.




۱. د لاندې شکلونو ګړی ګانو ته ځیر شئ، وختونه لکه د ښئ خوا ګړئ وختونه په دوو طریقو سره په خپلو کتاپچو کې ولیکئ.
















۲. مخامخ شکل په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.



وواياست نوموړی ساعت کوم وخت ښيي؟




وواياست هر یو ساعت کوم وخت ښيي، ساعتونه په پام کې ونیسئ د هر ساعت وخت په خپلو کتابچو کې ولیکئ.








































ګړئ ښودونکی (عقربه) د (۴) عدد ته مخامخ او د دقیقه ښودونکی عقربه د (۱۲) عدد ته مخامخ کړي بیا داسې پوښتنه وکړئ.



– ځوک ویلای شي چې د مودل ساعت عقربې کوم وخت ښيي. که چیرې زده کوونکي ونشي ویلای ښاغلی ښوونکی دې ورته ووایي ۴ بجې ښيي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایي د خپل کتاب (۹۱ او ۹۲) مخونه خلاص کړي دواړه مخونه په خپل ګروپونو کې په غور سره مطالعه کړئ. ښاغلی ښوونکی له ګروپونو څخه لیدنه کوي که چیرې زده کوونکي ستونزي ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۲– مشق او تمرین:** ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۹۲ او ۹۳) مخونو ته را وګرزوئ ورته ووایاست چې پوښتنې په خپل ګروپونو کې حل کړي د پوښتنو له حل کولو څخه دې ښوونکی لیدنه وکړي که چیري زده کوونکي ستونزي ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۳– ارزونه:** د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ځان ډاډمن کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړي دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښته:**

– څوک وایي چې ستاسو د لوست لومړی ساعت په څو بجو پیل کیږي؟

– څوک وایي ستاسو د لوست وروستی ساعت څه وخت پای ته رسیږی یعنی په څو بجو رخصت کیږئ؟

**مهارت:** زده کوونکي وکړای شي مختلف وختونه د ګړی په واسطه وښیي او د اړتیا په وخت کې وکاروي. ۸ بجې وښیي، ۹ بجې او ۱۵ دقیقې وښیي، ۱۰ بجې او ۳۰ دقیقې وښیي

**ذهنیت:** د ساعت په پیژندلو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:** څرنګه چې د وخت پیژندل د زده کوونکو له پاره ډیر ارزښت لري. هغوی د ګړی په واسطه کولای شي خپل ورځنی کار عیار کړي. او په ټاکلي وخت خپل کار ته ځان ورسوي. د ګړی لوستل هغوی چمتو کوي چې د ګړی سره سم ځان ته ویش مهال جوړ کړي د ځان او نورو ستونزي حل کړي.

**۴– کورنۍ دنده:** زده کوونکی دې د کتاب د (۹۴) مخ کورنۍ دنده د ګړی د مودل په کارولو سره ترسره ورسوي.

# سرلیک: مشق او تمرین

**(۹۵، ۹٦، ۹۷) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د ساعت په واسطه خپل د کار وخت تنظیم او وټاکي.

**اصطلاح ګاني:** ګړی، دقیقه، ثانیه، د کار وخت.

**د لوست مرستندوی مواد:** ګړی (ساعت)، د ساعت مودول.

**۱- فعالیتونه:**

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی په دري ګروپونو وویشئ. د هر زده کووونکي کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپونو کې وليدل شي اشتباه ګانې دې پر تخته وليکل شي. بيا دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه تشریح شي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

- ښاغلی ښوونکي زده کوونکو ته وواياست د ګړی د عقربې یا د ګړی ښودونکی یوه بشپړه دوره، ۱۲ ساعته ښيې او د دقیقې د عقربې یا دقیقې ښودونکی یو بشپړه دوره ٦۰ دقیقې یا یوه ګړی ښيې. یو واري د سترګو پټول او یا خلاصول یا یو واري د ورغوي ټکول تقریباً یو ثانیه ښيې. دا فعالیت او عملیه د جوړې په شکل د یو بل په مرسته سر ته ورسوئ.

- ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۹۵) مخ ته را وګرزوئ د ګړیو مختلف شکلونه وګورئ پوښتنې ولولئ په خپل ګروپونو کې یو بل ته ځواب ووایاست.

- ښاغـــلی ښوونکی: زده کوونکی دې ووايي چې په لومړئ واري تخمین کړي چې په یوه دقیقه کې څو واري الله(جل جلاله) ویلای شي. بیا دې په عملي توګه ووايي او د ګوتو په واسطه دې وشميري. د سترګو په پټولو او خلاصولو سره د ثانیې د عقربې یوه بشپړه دوره و ازموي. او په پاي کې دې وليکي چې د ثانیې د عقربې په یوه بشپړه دوره سره څو واري الله(جل جلاله) ویلای شي.

مشق او تمرین




۱. پورتنی هر یو شکل کوم وختونه راښيي؟
خواب: ٦ بجې، ۱۲ بجې او ۱۵ دقیقې.
۲. یو له بله څه توپیر لري؟
۳. ګړی ښوونکی او دقیقه ښوونکی یو له بله څه توپیر لري؟
خواب: ګړی ښوونکی لنډ او دقیقه ښوونکی اوږد وي.
۴. د ګړی شا او خوا یا مخ په څو مساوي برخو ویشل شوی دی؟
خواب: په ۱۲ مساوي برخو.
۵. که چیرې د ګړی ښوونکی عقربه د ۳ د عدد مخامخ او دقیقه ښوونکی عقربه د ۲ د عدد مخامخ قرار ولري. ګړی کوم وخت راښيي؟
خواب: ۳ بجې او ۱۰ دقیقې را ښيي.
۶. په ګړی کې د ۲ او ۳ دوو عدد تر منځ څو دقیقې دي؟
خواب: ۵ دقیقې دي.







- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د کتاب (۹٦) مخ خلاص کړي. شکلونه دې په غور سره په نظر کې ونیسي. ځوابونه دې په ګروپي ډول په خپل کتابچو کې وليکي.

- ښاغلی ښوونکی د ګروپونو له کار څخه لیدنه کوي. که چیرې زده کوونکي کومې ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړی.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۹٦) مخ ته را وګرزوی. د کتاب تش ځايونه د کتاب له هدایت سره سم ډک کړی. د ګړی د هر شکل مخامخ ته، اړوند وخت وښیاست.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ تر لاسه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په

لاندې ګړۍ ګانې د نمونې په توګه درکړل شوې دي هغو ته ځیر شئ.
د هغو د هر یوې تر لاندې تش ځای شته اړوند وخت یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.




دپورته ګړی ګانو رسمونو ته پاملرنه وکړئ او ځوابونه یې وواياست.
الف: درې واړه ګړی ګانې یو له بله څه توپیر لري؟
ځواب: عین وخت یعنی ۸ بجې ښيي.
ب: که چېرې دقیقه ښوونکی د ۱۲ له عدد څخه د ۲ عددته ورسیږي نوموړی ګړي ګانې کوم وخت ښيي؟
ځواب: ۸ بجې او ۱۰ دقیقې ښيي.
ج: که چېرې دقیقه ښوونکی له ۱۲ څخه حرکت وکړي او د ٦ عدد ته ورسیږي په پورتنیو شکلونو کې ګړی ګانې څو بجې راښيي.
ځواب: ۸ نیمې بجې یا ۸ بجې او ۳۰ دقیقې.
د: که چېرې دقیقه ښوونکی د ۱۲ له عدد څخه حرکت وکړي او یوه بشپړه دوره ووهي او بیا د ۱۲ عدد ته را ورسیږي هر یوه ګړی کوم وخت راښيي؟
ځواب: په دې صورت کې هر یوه ګړی ۹ بجې را ښيي.









لاندې عبارتونه بشپړ کړئ د ګړیو عقربې په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.



۱. زه له خوبه په ..............۵............ بجو وینښېږم.



۲. زموږ ښوونځی په .........۷.............. بجو پېل کیږي.



۳. زه د غرمې ډوډۍ په ......۱۲............ بجو خورم.



۴. زه په ...........۳............بجو کورنۍ دنده سرته رسوم.



۵. زه په ...........۱۰........... بجو له ښوونځی څخه رخصت کیږم.




زده کوونکي دې د یوې ګړی موډول له کاغذ څخه قیچي کړي او د مازیګر د لمانځه وخت دې په هغه کې وښيي.
ځواب: د زده کوونکو عملي کار دی.



صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک وایي چې اوس څو بجې دي؟

– څوک د ساعت په مودول کې ۳ بجې ښيي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د ساعت په مودول کې لاندې وختونه وښيي:

٦ بجې او ۳۰ دقیقې

۵ بجې او ۱۵ دقیقې

۲ بجې او ۴۵ دقیقې

**ذهنیت:**

د ګړۍ په لوستلو او په دقیق توګه د وخت په ټاکلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د ګړی پېژندل د زده کوونکو له پاره ډېر ارزښت لري هغوی کولی شي د خپل کار په وخت کې د ګړې له مخې پوه شي او د ګړی له مخې د ځان له پاره د کار مهال ویش جوړ کړي. د ګړی په لوستلو او لیدلو سره په ټاکلی وخت ځان کار ته ورسوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کونکی دې د یوې ګړۍ مودول له کاغذ څخه قیچي کړي او د مازديګر د لمانځه وخت دې په هغه کې وښيي.

# سرلیک:ورځ، اونۍ، میاشت او کال

**پنځه دیرشم لوست، (۹۸) مخ**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي اونۍ، میاشت او کال وپیژني.

**اصطلاح ګانې:** ورځ، اونۍ، میاشت، کال.

**د لوست مرستندوی مواد:** د ساعت مودول، د اونۍ د ورځو چارت، د کال د میاشتو چارت.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي. هر زده کوونکی دې خپله کورنۍ دنده اړوند ګروپ ته وښیي. د زده کوونکو اشتباه ګانې دې په تخته باندې ولیکل شي او بیا دې صحیح ځوابونه ورته وویل شي او هغو زده کوونکو چې پوښتنې په صحیح توګه حل کړې دي تشویق دې شي. بیا دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وشي:

– څوک پوهیږی چې د ورځې له یوې بجې څخه د شپې تر یوې بجې پورې څو ساعته کیږي؟

– ښاغلی ښوونکی! کله چې زده کوونکو پورته پوښتنې ته ځواب ووایه. پام ورته وکړئ چې کوم ګروپ په صحیح توګه ځواب وایې او یا زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې په خپل منځ کې مناقشه وکړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن خپل ځواب ونورو ګروپونو ته تشریح کړي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

– له هغه وروسته لاندې پوښتنې وکړئ:

– څوک ویلای شي چې نن څو شنبه ده؟

– څوک ویلای شی چې په کومو ورځو ښوونځی ته راځئ؟

– څوک ویلای شي چې په عمومي توګه د اونۍ په کوم ورځ رخصت یاست او ښوونځی ته نه راځئ؟

– څوک ویلای شي د اونۍ هغه ټولې ورځې چې ښوونځي

**پنځه دېرشم لوست: اونۍ ، میاشتې او کال**

هدف: زده کوونکي وکړای شي، ورځ اونۍ، میاشت او کال وپېژني.



| | | |
|---|---|---|
| ۲۴ ساعته | = | یوه شپه او ورځ |
| ۷ شپې او ورځې | = | یوه اونۍ |
| ۴ (اونۍ) | = | یوه میاشت |
| ۳۰ شپې او ورځې | = | یوه میاشت |
| ۱۲ میاشتې | = | یو کال |
| ۳٦۵ شپې او ورځې | = | یو کال |
| ۴ فصله | = | یو کال |



لاندې تش ځایونه د حل شوي مثال په توګه په مناسبو عددونو سره ډک کړئ!

مثال:

یوه میاشت ۳۰ شپې او ورځې ده.
یو کال ۳٦۵ شپې او ورځې دی.
یوه اونۍ ۷ شپې او ورځې ده.
یوه میاشت ۴ اونۍ ده.
یو کال ۱۲ میاشتې دی.




ته راځي هره ورځ یې په کوم نامه سره یادیږي؟

– او هغه یوه ورځ چې نه راځئ په کوم نامه سره یادیږي؟ او ټولې په څه نامه یادیږي؟

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپل ګروپونو کې تر بحث او مناقشې لاندې ونیسي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل د ګروپ کار، نورو ګروپونو ته تشریح کړي. او د ګروپونو د کار کولو له جریان څخه لیدنه او کتنه وکړئ که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته ورسره وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه بیا داسې پوښتنې وکړئ:

– څوک ویلای شي چې یوه میاشت څو اونۍ او څو ورځې دي؟

– څوک ویلای شي چې یو کال څو میاشتې او څو ورځې دي؟

– څوک ویلای شي چې یو کال څو میاشتې او څو ورځې دي؟

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ۴ دقیقې وخت ورکړئ چې د دې پوښتنو په برخه کې فکر او سوچ وکړي چې د اونۍ د ورځو او د کال د میاشتو چارتونو ته په غور سره وګوري. او بیا دې د کتاب (۹۸) مخ خلاص کړي. د کتاب د مخ په مرسته سره دې پوښتنو ته ځواب ووایي. که چیرې زده کوونکي له کومې ستونزې سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۹۸) مخ، پوښتنې وګوري او تش ځایونه دې د حل شوي مثال په ډول په مناسب عددونو سره ډک کړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ تر لاسه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د اونۍ د ورځو نومونه اخلي؟

– څوک وایې چې یوه اونۍ څو ورځې دي؟

– څوک وایې چې یو کال څو میاشتې دي؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د کار رسمي ورځې او رخصتې ګانې تشخیص کړی.

– زده کوونکي وکړای شي د اونۍ د ورځو او د کال د میاشتو نومونه په پرله پسی توګه ولیکي.

– زده کوونکی د کال د فصلونو نومونه په ترتیب سره ولیکلای شي.

**ذهنیت:**

د اونۍ د ورځو، او کال د میاشتو او فصلونو په پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

کله چې زده کوونکي د کار رسمي ورځې او رخصتی ګانې او همدارنګه اونۍ، میاشت، کال او فصلونه یې وپیژني کولای شي خپل د کار او فعالیتونو مهال ویش د ژوندانه له اړتیاوو سره سم برابر او جوړ کړي. په دې صورت کې له نورو سره هم مرسته وکولی شي.

**۴– کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې چې د اونۍ ورځې، د کال میاشتې او فصلونه نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او زده یې کړي.

# سرلیک: د جنتري پیژندنه

**شپږ دیرشم لوست، (۹۹ ، ۱۰۰) مخونه**
**لومړۍ برخه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي جنتري وپيژني او له هغې څخه کار واخستلای شي.

**اصطلاح ګانې:** جنتري، میاشت، اونۍ.

**د لوست مرستندوی مواد:** یو چارت چې د کال جنتري وښيي، وړې جنتري ګانې.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده وګورئ. هغو زده کوونکو چې کورنۍ دنده يې سرته نه ده رسولې هغو ته وواياست چې په راتلونکي کې بې پروايي ونکړي. خواه مخواه کورنۍ دنده سرته ورسوي. د زده کوونکو اشتباه ګانې دې په تخته بانـــدې ولیـــکل شي. د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا کړئ که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په دريو ګروپونو وويشئ، بیا له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:

– په تاسو کې چا جنتری لیدلې ده؟
– څوک له ځانه سره جنتري لري؟
– خلک له جنتري څخه د څه دپاره کار اخلي؟

– ښاغلی ښوونکی! کله چې په پورته ډول پوښتنې مو وکړې او مختلف ځوابونه مو واوریدل. د جنتري د ارزښت په برخه کې زده کوونکو ته خبرې وکړئ او معلومات ورکړئ. بیا د روان کال جنتری چارت پر تخته ونښلوئ. په لومړي واري د روانې میاشتې په برخه کې خبرې وکړئ ورته وواياست د کال کومه میاشت ده؟ او له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ:

– نن څو شنبه ده؟
– نن د میاشتې څومه ده؟
– دا کومه میاشت ده؟

شپږ دیرشم لوست: د جنتري پیژندنه

هدف: زده کوونکي جنتري وپيژني او د هغې څخه کار واخستلی شي.

صفرالمظفر ۱۴۲۷ ربیع الاول — حمل - وری ۱۳۸۵ — March April 2006

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۴ 24 ۲۳ | ۳ 23 ۲۲ | ۲ 22 ۲۱ | ۱ 21 ۲۰ | | | |
| ۱۱ 31 ربیع الاول | ۱۰ 30 ۲۹ | ۹ 29 ۲۸ | ۸ 28 ۲۷ | ۷ 27 ۲۶ | ۶ 26 ۲۵ | ۵ 25 ۲۴ |
| ۱۸ 7 ۸ | ۱۷ 6 ۷ | ۱۶ 5 ۶ | ۱۵ 4 ۵ | ۱۴ 3 ۴ | ۱۳ 2 ۳ | ۱۲ April ۲ |
| ۲۵ 14 ۱۵ | ۲۴ 13 ۱۴ | ۲۳ 12 ۱۳ | ۲۲ 11 ۱۲ | ۲۱ 10 ۱۱ | ۲۰ 9 ۱۰ | ۱۹ 8 ۹ |
| | ۳۱ 20 ۲۱ | ۳۰ 19 ۲۰ | ۲۹ 18 ۱۹ | ۲۸ 17 ۱۸ | ۲۷ 16 ۱۷ | ۲۶ 15 ۱۶ |

ربیع الاول ۱۴۲۷ ربیع الاخر — ثور - غویی ۱۳۸۵ — April May 2006

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ 21 ۲۲ | | | | | ۳۱ 21 ۲۲ | ۳۰ 20 ۲۱ |
| ۸ 28 ۲۹ | ۷ 27 ۲۸ | ۶ 26 ۲۷ | ۵ 25 ۲۶ | ۴ 24 ۲۵ | ۳ 23 ۲۴ | ۲ 22 ۲۳ |
| ۱۵ 5 ۶ | ۱۴ 4 ۵ | ۱۳ 3 ۴ | ۱۲ 2 ۳ | ۱۱ May ۲ | ۱۰ 30 ربیع الاخر | ۹ 29 ۳۰ |
| ۲۲ 12 ۱۳ | ۲۱ 11 ۱۲ | ۲۰ 10 ۱۱ | ۱۹ 9 ۱۰ | ۱۸ 8 ۹ | ۱۷ 7 ۸ | ۱۶ 6 ۷ |
| ۲۹ 19 ۲۰ | ۲۸ 18 ۱۹ | ۲۷ 17 ۱۸ | ۲۶ 16 ۱۷ | ۲۵ 15 ۱۶ | ۲۴ 14 ۱۵ | ۲۳ 13 ۱۴ |

ربیع الاخر ۱۴۲۷ جمادی الاول — جوزا - غبرګولی ۱۳۸۵ — May June 2006

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ 26 ۲۷ | ۴ 25 ۲۶ | ۳ 24 ۲۵ | ۲ 23 ۲۴ | ۱ 22 ۲۳ | | |
| ۱۲ 2 ۵ | ۱۱ June ۴ | ۱۰ 31 ۳ | ۹ 30 ۲ | ۸ 29 جمادی الاول | ۷ 28 ۲۹ | ۶ 27 ۲۸ |
| ۱۹ 9 ۱۲ | ۱۸ 8 ۱۱ | ۱۷ 7 ۱۰ | ۱۶ 6 ۹ | ۱۵ 5 ۸ | ۱۴ 4 ۷ | ۱۳ 3 ۶ |
| ۲۶ 16 ۱۹ | ۲۵ 15 ۱۸ | ۲۴ 14 ۱۷ | ۲۳ 13 ۱۶ | ۲۲ 12 ۱۵ | ۲۱ 11 ۱۴ | ۲۰ 10 ۱۳ |
| | | ۳۱ 21 ۲۴ | ۳۰ 20 ۲۳ | ۲۹ 19 ۲۲ | ۲۸ 18 ۲۱ | ۲۷ 17 ۲۰ |

جمادی الاول ۱۴۲۷ جمادی الاخر — سرطان - چنګاښ ۱۳۸۵ — June July 2006

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲ 23 ۲۶ | ۱ 22 ۲۵ | | | | | ۳۱ 22 ۲۵ |
| ۹ 30 ۳ | ۸ 29 ۲ | ۷ 28 | ۶ 27 ۳۰ | ۵ 26 ۲۹ | ۴ 25 ۲۸ | ۳ 24 ۲۷ |
| ۱۶ 7 ۱۰ | ۱۵ 6 ۹ | ۱۴ 5 ۸ | ۱۳ 4 ۷ | ۱۲ 3 ۶ | ۱۱ 2 ۵ | ۱۰ July ۴ |
| ۲۳ 14 ۱۷ | ۲۲ 13 ۱۶ | ۲۱ 12 ۱۵ | ۲۰ 11 ۱۴ | ۱۹ 10 ۱۳ | ۱۸ 9 ۱۲ | ۱۷ 8 ۱۱ |
| ۳۰ 21 ۲۴ | ۲۹ 20 ۲۳ | ۲۸ 19 ۲۲ | ۲۷ 18 ۲۱ | ۲۶ 17 ۲۰ | ۲۵ 16 ۱۹ | ۲۴ 15 ۱۸ |

جمادی الاخر ۱۴۲۷ رجب المرجب — اسد - زمری ۱۳۸۵ — July August 2006

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۶ 28 ۲ | ۵ 27 رجب المرجب | ۴ 26 ۲۹ | ۳ 25 ۲۸ | ۲ 24 ۲۷ | ۱ 23 ۲۶ | |
| ۱۳ 4 ۹ | ۱۲ 3 ۸ | ۱۱ 2 ۷ | ۱۰ August ۶ | ۹ 31 ۵ | ۸ 30 ۴ | ۷ 29 ۳ |
| ۲۰ 11 ۱۶ | ۱۹ 10 ۱۵ | ۱۸ 9 ۱۴ | ۱۷ 8 ۱۳ | ۱۶ 7 ۱۲ | ۱۵ 6 ۱۱ | ۱۴ 5 ۱۰ |
| ۲۷ 18 ۲۳ | ۲۶ 17 ۲۲ | ۲۵ 16 ۲۱ | ۲۴ 15 ۲۰ | ۲۳ 14 ۱۹ | ۲۲ 13 ۱۸ | ۲۱ 12 ۱۷ |
| | | | ۳۱ 22 ۲۷ | ۳۰ 21 ۲۶ | ۲۹ 20 ۲۵ | ۲۸ 19 ۲۴ |

رجب المرجب ۱۴۲۷ شعبان المعظم — سنبله - وږی ۱۳۸۵ — August September 2006

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳ 25 ۳۰ | ۲ 24 ۲۹ | ۱ 23 ۲۸ | | | | |
| ۱۰ September ۷ | ۹ 31 ۶ | ۸ 30 ۵ | ۷ 29 ۴ | ۶ 28 ۳ | ۵ 27 ۲ | ۴ 26 |
| ۱۷ 8 ۱۴ | ۱۶ 7 ۱۳ | ۱۵ 6 ۱۲ | ۱۴ 5 ۱۱ | ۱۳ 4 ۱۰ | ۱۲ 3 ۹ | ۱۱ 2 ۸ |
| ۲۴ 15 ۲۱ | ۲۳ 14 ۲۰ | ۲۲ 13 ۱۹ | ۲۱ 12 ۱۸ | ۲۰ 11 ۱۷ | ۱۹ 10 ۱۶ | ۱۸ 9 ۱۵ |
| ۳۱ 22 ۲۸ | ۳۰ 21 ۲۷ | ۲۹ 20 ۲۶ | ۲۸ 19 ۲۵ | ۲۷ 18 ۲۴ | ۲۶ 17 ۲۳ | ۲۵ 16 ۲۲ |

۱- د حمل میاشت پیدا کړئ. په حمل کې ۱۷ نېټه د حمل په کومه ورځ راځي؟
۲- د سرطان میاشت کومه ده؟ د سرطان ۱۱ نېټه په کومه ورځ راځي.
۳- نورې میاشتې هم په دغه ډول تر کار لاندې ونیسئ!



– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست د ۵ دقیقو له پاره د پورتنیو پوښتنو په برخه کې فکر وکړئ او صحیح ځواب وواياست. ښايي چې ستاسو د دویمې پوښتنې په برخه کې بیا زده کوونکو ته وواياست چې د خپل کتاب (۹۹ او ۱۰۰) مخونه خلاص کړي او په ډیر غور سره د کال میاشتې ولولي.

– ښاغلی ښوونکی! د لومړي ګروپ زده کوونکو ته د وری، غويي، غبرګولي او چنګاښ میاشتې، د دویم ګروپ زده کوونکو ته د زمرۍ، وږي، تلې او لړم میاشتې، او همدارنګه د دریم ګروپ زده کوونکو ته لیندۍ، مرغومي، سلواغې او کب میاشتې ورکړئ. چې په خپل ګروپونو کې په غور سره تر مطالعې لاندې ونیسي. د هرې میاشتې لومړۍ نیټه، ۱۵ نیټه او وروستی یا د پای نیټه ولیکي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته وښيي او تشریح دې کړي. ښاغلی ښوونکی د ګروپي کار څخه لیدنه کوي. که چیرې زده کوونکي له کوم ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست په خپل ګروپونو کې له جنتري څخه کار واخلئ. د نوي کال لومړی ورځ، د حضرت محمد(ص) د میلاد ورځ، د مبارکې روژې لومړی ورځ، د کوچني اختر ورځې او د لوی اختر ورځې پيدا کړي او ويې ليکي. چې د جنتري کومه ورځ، کومه نيټه او کومه مياشت ده.

ښاغلی ښوونکی! که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک د زمرې د مياشتې ۲۸ نيټه په جنتری کې ښيې چې په کومه ورځ ده؟
- څوک وايي چې نن کومه ورځ او د مياشتې څومه ده؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د جنتري له مخې د خپل اړتيا وړ نيټه پيدا کړي.
- زده کوونکي وکړای شي د جنتری له مخې د رخصتي او ملي ورځې پيدا کړي.

**ذهنيت:**

د جنتري پيژندل او د هغې له مخې د نيټو په پيدا کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او په خوښي سره له جنتري څخه کار اخلي.

**ارزښت:**

د جنتري پيژندل او پوهيدل د زده کوونکو له پاره ارزښت لري څکه هغوی کولئ شي په ژوند کې له هغې څخه کار واخلي د اونۍ، مياشتي، مذهبي ورځو، ملي ورځو، عمومي رخصتی ګانې څخه ځان خبر کړي. او نورو ته هم دا ورځې ورونيې.

September 2006 October — میزان - تله ۱۳۸۵ — شعبان المعظم ۱۴۲۷ رمضان المبارک

| شنبه sat | یکشنبه sun | دوشنبه mon | سه شنبه tue | چهارشنبه wed | پنجشنبه thu | جمعه fri |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ ۲۹ 23 | ۲ رمضان المبارک 24 | ۳ ۲ 25 | ۴ ۳ 26 | ۵ ۴ 27 | ۶ ۵ 28 | ۷ ۶ 29 |
| ۸ ۷ 30 | ۹ ۸ October | ۱۰ ۹ 2 | ۱۱ ۱۰ 3 | ۱۲ ۱۱ 4 | ۱۳ ۱۲ 5 | ۱۴ ۱۳ 6 |
| ۱۵ ۱۴ 7 | ۱۶ ۱۵ 8 | ۱۷ ۱۶ 9 | ۱۸ ۱۷ 10 | ۱۹ ۱۸ 11 | ۲۰ ۱۹ 12 | ۲۱ ۲۰ 13 |
| ۲۲ ۲۱ 14 | ۲۳ ۲۲ 15 | ۲۴ ۲۳ 16 | ۲۵ ۲۴ 17 | ۲۶ ۲۵ 18 | ۲۷ ۲۶ 19 | ۲۸ ۲۷ 20 |
| ۲۹ ۲۸ 21 | ۳۰ ۲۹ 22 | | | | | |

October 2006 November — عقرب - لړم ۱۳۸۵ — رمضان المبارک ۱۴۲۷ شوال المکرم

| شنبه sat | یکشنبه sun | دوشنبه mon | سه شنبه tue | چهارشنبه wed | پنجشنبه thu | جمعه fri |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | ۱ ۳۰ 23 | ۲ شوال المکرم 24 | ۳ ۲ 25 | ۴ ۳ 26 | ۵ ۴ 27 |
| ۶ ۵ 28 | ۷ ۶ 29 | ۸ ۷ 30 | ۹ ۸ 31 | ۱۰ ۹ November | ۱۱ ۱۰ 2 | ۱۲ ۱۱ 3 |
| ۱۳ ۱۲ 4 | ۱۴ ۱۳ 5 | ۱۵ ۱۴ 6 | ۱۶ ۱۵ 7 | ۱۷ ۱۶ 8 | ۱۸ ۱۷ 9 | ۱۹ ۱۸ 10 |
| ۲۰ ۱۹ 11 | ۲۱ ۲۰ 12 | ۲۲ ۲۱ 13 | ۲۳ ۲۲ 14 | ۲۴ ۲۳ 15 | ۲۵ ۲۴ 16 | ۲۶ ۲۵ 17 |
| ۲۷ ۲۶ 18 | ۲۸ ۲۷ 19 | ۲۹ ۲۸ 20 | ۳۰ ۲۹ 21 | | | |

November 2006 December — قوس - لیندی ۱۳۸۵ — ذیقعده الحرام ۱۴۲۷

| شنبه sat | یکشنبه sun | دوشنبه mon | سه شنبه tue | چهارشنبه wed | پنجشنبه thu | جمعه fri |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | ۱ ذیقعده الحرام 22 | ۲ ۲ 23 | ۳ ۳ 24 |
| ۴ ۴ 25 | ۵ ۵ 26 | ۶ ۶ 27 | ۷ ۷ 28 | ۸ ۸ 29 | ۹ ۹ 30 | ۱۰ ۱۰ December |
| ۱۱ ۱۱ 2 | ۱۲ ۱۲ 3 | ۱۳ ۱۳ 4 | ۱۴ ۱۴ 5 | ۱۵ ۱۵ 6 | ۱۶ ۱۶ 7 | ۱۷ ۱۷ 8 |
| ۱۸ ۱۸ 9 | ۱۹ ۱۹ 10 | ۲۰ ۲۰ 11 | ۲۱ ۲۱ 12 | ۲۲ ۲۲ 13 | ۲۳ ۲۳ 14 | ۲۴ ۲۴ 15 |
| ۲۵ ۲۵ 16 | ۲۶ ۲۶ 17 | ۲۷ ۲۷ 18 | ۲۸ ۲۸ 19 | ۲۹ ۲۹ 20 | ۳۰ ۳۰ 21 | |

December 2006 January 2007 — جدی - مرغومی ۱۳۸۵ — ذیحجه الحرام ۱۴۲۷ محرم الحرام ۱۴۲۸

| شنبه sat | یکشنبه sun | دوشنبه mon | سه شنبه tue | چهارشنبه wed | پنجشنبه thu | جمعه fri |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۰ محرم الحرام 20 | | | | | | ۱ ذیحجه الحرام 22 |
| ۲ ۲ 23 | ۳ ۳ 24 | ۴ ۴ 25 | ۵ ۵ 26 | ۶ ۶ 27 | ۷ ۷ 28 | ۸ ۸ 29 |
| ۹ ۹ 30 | ۱۰ ۱۰ 31 | ۱۱ ۱۱ January | ۱۲ ۱۲ 2 | ۱۳ ۱۳ 3 | ۱۴ ۱۴ 4 | ۱۵ ۱۵ 5 |
| ۱۶ ۱۶ 6 | ۱۷ ۱۷ 7 | ۱۸ ۱۸ 8 | ۱۹ ۱۹ 9 | ۲۰ ۲۰ 10 | ۲۱ ۲۱ 11 | ۲۲ ۲۲ 12 |
| ۲۳ ۲۳ 13 | ۲۴ ۲۴ 14 | ۲۵ ۲۵ 15 | ۲۶ ۲۶ 16 | ۲۷ ۲۷ 17 | ۲۸ ۲۸ 18 | ۲۹ ۲۹ 19 |

January 2007 February — دلو - سلواغه ۱۳۸۵ — محرم الحرام ۱۴۲۸ صفرالمظفر

| شنبه sat | یکشنبه sun | دوشنبه mon | سه شنبه tue | چهارشنبه wed | پنجشنبه thu | جمعه fri |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | ۱ ۲ 21 | ۲ ۳ 22 | ۳ ۴ 23 | ۴ ۵ 24 | ۵ ۶ 25 | ۶ ۷ 26 |
| ۷ ۸ 27 | ۸ ۹ 28 | ۹ ۱۰ 29 | ۱۰ ۱۱ 30 | ۱۱ ۱۲ 31 | ۱۲ ۱۳ February | ۱۳ ۱۴ 2 |
| ۱۴ ۱۵ 3 | ۱۵ ۱۶ 4 | ۱۶ ۱۷ 5 | ۱۷ ۱۸ 6 | ۱۸ ۱۹ 7 | ۱۹ ۲۰ 8 | ۲۰ ۲۱ 9 |
| ۲۱ ۲۲ 10 | ۲۲ ۲۳ 11 | ۲۳ ۲۴ 12 | ۲۴ ۲۵ 13 | ۲۵ ۲۶ 14 | ۲۶ ۲۷ 15 | ۲۷ ۲۸ 16 |
| ۲۸ ۲۹ 17 | ۲۹ ۳۰ 18 | ۳۰ صفرالمظفر 19 | | | | |

January 2007 February — حوت - کب ۱۳۸۵ — محرم الحرام ۱۴۲۸ صفرالمظفر

| شنبه sat | یکشنبه sun | دوشنبه mon | سه شنبه tue | چهارشنبه wed | پنجشنبه thu | جمعه fri |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | ۱ ۲ 20 | ۲ ۳ 21 | ۳ ۴ 22 | ۴ ۵ 23 |
| ۵ ۶ 24 | ۶ ۷ 25 | ۷ ۸ 26 | ۸ ۹ 27 | ۹ ۱۰ 28 | ۱۰ ۱۱ March | ۱۱ ۱۲ 2 |
| ۱۲ ۱۳ 3 | ۱۳ ۱۴ 4 | ۱۴ ۱۵ 5 | ۱۵ ۱۶ 6 | ۱۶ ۱۷ 7 | ۱۷ ۱۸ 8 | ۱۸ ۱۹ 9 |
| ۱۹ ۲۰ 10 | ۲۰ ۲۱ 11 | ۲۱ ۲۲ 12 | ۲۲ ۲۳ 13 | ۲۳ ۲۴ 14 | ۲۴ ۲۵ 15 | ۲۵ ۲۶ 16 |
| ۲۶ ۲۷ 17 | ۲۷ ۲۸ 18 | ۲۸ ۲۹ 19 | ۲۹ ربیع الاول 20 | | | |




**۴- کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې د کتاب د (۹۹) مخ په کارولو سره يو جدول چې (۳۱) ځايونه (خالي) ولري رسم کړي. د جدول په تشو ځايونو کې د غوايي (ثور) د مياشتي ټولي نيټې په ترتيب له لومړی نيټي څخه تر پای پوري وليکي.

# سرلیک: د جنتري پیژندنه

**شپږ دیرشم لوست، (۱۰۱ ، ۱۰۲) مخونه**
**دویمه برخه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یي)**

**هدف:** زده کوونکي جنترۍ وپیژني او د هغې څخه کار واخیستلای شي.

**اصطلاح ګانې:** جنتري، میاشت، کال.

**د لوست مرستندوی مواد:** د روان کال جنتري، د کتاب د (۹۹، ۱۰۰) مخونو جنتري.

**۱- فعالیتونه:**

- ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو کورنۍ دنده وګورئ. که چیرې زده کوونکو اشتباه کړې وي. اشتباه ګانې دې د زده کوونکو په واسطه صحیح شي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.
- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشه. زده کوونکو ته ووایاست چې د کتاب (۱۰۱) مخ خلاص کړي، لومړی پوښتنه دې د کتاب له هدایت سره سم کار وکړي، (۲) پوښتنه دې لومړی ګروپ ته، (۳) پوښتنه دې دویم ګروپ ته او (۴) پوښتنه دې دریم ګروپ ته ورکړل شي چې په خپل ګروپونو کې کار وکړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې زده کوونکي کوم مشکل ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.
- ښاغلی ښوونکي! زده کوونکو ته ووایاست چې د (۱۰۱) مخ (۵) پوښتنه د (۱۰۲) مخ (٦)، (۷) او (۸) شمیرې پوښتنې په خپلو کتابچو کې جلا، جلا حل کړي. او بیا دې په ګډه سره پوښتنې په اړوند ګروپونو کې وګوري. که چیرې کوم زده کوونکي د پوښتنو په حل کې اشتباه کړې وي هغه ورته صحیح کړئ. چې زده کوونکي په خپله اشتباه پوه شي.

پوښتنې:

۱ـ د چنګاښ د میاشتې د ورځو تش ځایونه د جنتري له مخې ډک کړئ!

سرطان - چنګاښ ۱۳۸۵ — June July 2006 — جمادی الاول جمادی الاخر ۱۴۲۷

| جمعه fri | پنجشنبه thu | چهارشنبه wed | سه شنبه tue | دوشنبه mon | یکشنبه sun | شنبه sat |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲ ۲۶ 23 | ۱ ۲۵ 22 | | | | | ۳۱ ۲۵ 22 |
| ۹ ۳ 30 | ۸ ۲ 29 | ۷ 28 | ۶ ۳۰ 27 | ۵ | ۴ ۲۸ 25 | ۳ ۲۷ 24 |
| ۱۶ ۱۰ 7 | ۱۵ ۹ 6 | ۱۴ | ۱۳ | ۱۲ ۶ 3 | ۱۱ ۵ 2 | ۱۰ ۴ July |
| ۲۳ ۱۷ 14 | ۲۲ ۱۶ 13 | ۲۱ | ۲۰ ۱۴ 11 | ۱۹ ۱۳ 10 | ۱۸ | ۱۷ |
| ۳۰ | ۲۹ | ۲۸ ۲۲ 19 | ۲۷ ۲۱ 18 | ۲٦ | ۲۵ | ۲۴ ۱۸ 15 |

۲ـ له جنتري څخه په کار اخستنې سره د کال کومې میاشتې ۳۱ ورځې دي؟

ځواب: وری غوایي غبرګولي چنګاښ زمری وږی

۳ـ د کال کومې میاشتې ۳۰ ورځې دي؟

ځواب: تله لړم لیندۍ مرغومی سلواغه

۴ـ د کال کومې میاشتې ۲۹ ورځې دي؟

ځواب: حوت

۵ـ د سږ کالې د زمري د میاشتې ۲۸ نېټه د اونۍ له کومې ورځې سره سمون لري؟

ځواب: د شنبې د ورځې سره مطابقت لري.

۱۰۱

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۲) مخ ته را واړ وئ ورته وواياست د دې مخ (۹) شمیره پوښتنه په غور سره مطالعه کړئ. او هغه په خپل ګروپونو کې حل او خبرې وربانديې وکړئ. که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ تر لاسه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ. د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک وایې چې د وږی د میاشتی د جمعې ورځې په کومو نیټو راځي؟

- د جنترۍ په کارولو سره ویلای شي چې نن د کومې میاشتې څومه ده؟

**مهارت:**

- زده کوونکی وکړای شي جنترۍ په سمه توګه وکاروي.
- زده کوونکي وکړای شي د جنترۍ په کارولو سره د رخصتۍ ورځې او د کار ورځې تشخیص کړي.

**ذهنیت:**

د جنترۍ له مخې د کال، میاشتو او اونیو ورځو په پوهیدلو سره د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راځي او خوښي کوی.

**ارزښت:**

د ورځو، اونۍ، میاشتو او کال پیژندل د زده کوونکو له پاره ډیر ارزښت لري هغوی د جنترۍ له مخې کولای شي، ورځې، میاشتې او کال تشخیص کړي د یوه کال د اونیو شمیر د میاشتو شمیر او د ورځو شمیر د جنترۍ له مخې ووایې.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۱۰۲) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي.

د زمري د میاشتې د چهارشنبې په ورځ کوم تاریخونه مطابقت کوي؟

ځواب: د ۴، ۱۱، ۱۸ او ۲۵ نیټې مطابقت کوي.

۶. زه د **۱۳۸۴** کال د **وری** په میاشت کې ښوونځی ته شامل شوئ یم.

۷. زه په **۱۳۸۵** کال کې له دویم ټولګی څخه دریم ټولګی ته بریالی شوی یم.

۸. د اونۍ ورځې د جنترۍ له مخې ولیکئ!

ځواب: شنبه، یکشنبه، دوشنبه، سه شنبه، چهارشنبه، پنجشنبه، جمعه

۹. د کال د میاشتو نومونه په ترتیب سره د جنترۍ له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!







زده کوونکي دې د پلار او مور په مرسته خپل د زیږیدلو، کال، میاشت او ورځ په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ځواب: د زده کوونکو کار دی.



# سرلیک: د مایعاتو د اندازه کولو واحد (لیتر)

**اووه دیرشم لوست، (۱۰۳) مخ**
**لومړی برخه**
**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي چې په ورځني ژوند کې مایعات په لیتر سره اندازه کوي.
**اصطلاح ګاني:** لیتر، مایعات، اندازه.
**د لوست مرستندوی مواد:** معمولي ګیلاس، د اوبو جک او یا کوم بل لوښی چې د (۴) ګیلاسونو اوبو ځای ولري.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په دري ګروپونو وویشئ. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده په غور سره وګورئ بیا دې په اړوند ګروپونو کې یو جدول ترتیب شي د ګروپ د زده کوونکو نومونه دې په کې ولیکل شي او د زده کوونکی له نامه سره دې د هغه د زیږیدني نیټه ولیکي. که چیرې کوم زده کوونکي د خپل زیږیدنۍ نیټه لیکلی او یا راوړی نه وي او یا یې اشتباه کړي وي. زده کوونکی ته دې وکتل شي او د زیږیدني نیټه دې ولیکل شي. ښاغلی ښوونکی دې ډیر کوښښ وکړي ترڅو د زیږیدني نیټه صحیح او سمه ولیکي. او بیا دې هر زده کوونکی د خپلې زیږیدنې نیټه نورو زده کوونکو ته ووایې.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته دې وویل شي چې پیاز، پټاټې او بوره د څه شي په واسطه اندازه کوي او رانیسي. ښایې چې زده کوونکي ووایې د کیلوګرام د وزن په واسطه. اوس څوک ویلای شي چې تیل غوړي، مایع (اوبلن شیان) او شیدې د څه شی په واسطه اندازه کوي او په بازار کې څه ډول پلورل او رانیول صورت نیسي. ښایې چې زده کوونکي ووایې د پیمانې په واسطه. که چیرې زده کوونکي ونشي ویلای. ښاغلی ښوونکی دې ورته

## اووه دېرشم لوست: د مایعاتو د اندازه کولو واحد (لیتر)

هدف: زده کوونکي پوه شي چې ورځنی ژوند کې مایعات په لیتر باندې اندازه کیږي.




۱. څوك پوهیږي چې تېل په څه شي اندازه کیږي؟
۲. شیدې د څه شي په واسطه اندازه کیږي؟
۳. اوبه د څه شي په واسطه اندازه کوي.



ګرانو زده‌کوونکو! که چیرې ځیر شوي یاست د تیلو په ګیلنو، په مایع دواګانو د اوبو په بوشکو او په مایع غوړیوباندې د لیتر کلمه لیکل شوې وي.
نو باید پوه شئ چې مایعات د لیتر په واسطه اندازه کیږي. که چیرې ۴ معمولي ګیلاس اوبه په یوه لوښي او یا یوه جك کې واچوو نو تقریباً یو لیتر اوبه کیږي. تاسو کولای شئ چې دغه ۴ معمولي ګیلاسو اوبو مقدار، د یوه لیتر په توګه ومنئ. دتیلو، شیدو، مایع غوړیو او اوبو په رانیولو او پلورلو کې د لیتر څخه کار واخلئ ډېرو تیل پلورونکي سر خلاصی بوتل او یا ګیلن په نښه کوي په پلورلو او رانیولوکې له هغو څخه د مایعاتو د واحد په توګه کار اخلي.






ووایي د پیمانې په واسطه اندازه کیږي. هم هغه پیمانه چې د ګیلاس، بوتل او یا کوم بل لوښي په واسطه اندازه کوي د لیتر په نامه یادیږی ښاغلی ښوونکی! د لیتر د پیژندلو د لوست په ورځ د هیټوال یا زده کوونکو په مرسته درجه لرونکی بوتل یا ګیلن چې په هغو باندې د لیتر اندازې لیکل شوي وي. تیار کړئ او زده کوونکو ته یې وښیاست، چې په عملي توګه اوبه د ګیلاس په واسطه پیمانه کړي.

– ښاغلی ښوونکی! د امکان په صورت کې زده کوونکي له ټولګی څخه بهر ویالي یا نل یعني د اوبو څنګ ته بوزئ. چې په عملي توګه بوشکي او یا ګیلن له اوبو څخه ډک کړي. او وګوري چې څو ګیلاسه اوبه دي، بیا دې د ګیلاسونو د اوبو شمیر د بوشکۍ او یا ګیلن په لیترونو باندې وویشي نو پیدا کولی شي چې څو ګیلاسه اوبه یو لیتر کیږي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۳) مخ

ته را وګرزوئ چې هغه په غور سره مطالعه کړي د (۱)، (۲) او (۳) ګڼو پوښتنو ته ځواب ووايې.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی پوه شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړی. د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړئ.

**پوهه:**

- څوک د یوه لیتر اوبو مقدار په ګیلاسو سره ښیي؟
- څوک وايي که چیری درجه لرونکی لوښی نه وي یو لیتر د څه شي په واسطه معلومولای شو؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي لیتر وپیژني او تشخیص یې کړي.
- زده کوونکي وکړای شي مایعات د لیتر په واسطه اندازه کړي.

**ذهنیت:**

د لیتر په پوهیدلو او پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د لیتر پیژندل او په هغه باندې پوهیدل د زده کوونکو له پاره ډیر ارزښت لري هغوی کولی شي مایعات په دقیق توګه اندازه او د مایعاتو په اندازه کولو کې اشتباه ونکړي په دې برخه کې له نورو سره هم مرسته کولی شي.

**۴- کورنۍ دنده:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې په کور کې یو لیتر د ګیلاس په واسطه اندازه کړي او د کورنیو غړو ته یې د لیتر اندازه وښیاست.

# سرلیک: د مایعاتو د اندازه کولو واحد (لیتر)

**اووه دیرشم لوست، (۱۰۴) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي پوه شي چې په ورځني ژوند کې مایعات د لیتر په واسطه اندازه کوي.

**اصطلاح ګاني:** پیمانه، لیتر، مایعات (اوبلن شیان).

**د لوست مرستندوی مواد:** ګیلاس، د اوبو جک، ګیلن او د غوړیو بوشکي.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی د کورنۍ دندې له لیدلو او یا پوښتلو وروسته زده کوونکي په درې ګروپونو وویشئ.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي چې:

– چا له بازار څخه تیل رانیولي دي؟

– هټیوال تیل څه ډول اندازه یا پیمانه کوي؟

– ښاغلی ښوونکی! ښايي چې څو زده کوونکي خپل لاس پورته کړي. او هر یو یې د پیمانې یا اندازه کولو مختلفې طریقې ووایي. د زده کوونکو د ځوابونو له اوریدلو وروسته دې ښاغلی ښوونکی له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي. که چیرې هټیوال نظر هغو پیسو ته چې تاسو ورکړي دي. تیل لږ درکړي وي. څرنګه پوهیږئ چې هټیوال اشتباه کړې ده؟

– ښاغلی ښوونکی ښايي چې زده کوونکي صحیح او د قناعت وړ ځواب ونه وايي یا ونه توانیږي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست د لیتر د اندازې پیژندل او پیمانه کول ډیر ضروري دي. راځئ چې مونږ او تاسو د څو لوښو لکه د سطل، بوتل، ګډوي او د قطي د اوبو مقدار د ګیلاس، بیکر او یا درجه لرونکي بوتل په واسطه په عملي توګه پیمانه کړو.

پوښتنې:

۱ـ څو ګیلاس اوبه یو لیتر کیږي؟

ځواب: ۴ ګیلاسه اوبه یو لیتر کیږي.

۲ـ ۲ ګیلاس اوبه څو لیتره کیږي؟

ځواب: دوه ګیلاس اوبه نیم لیتره کیږي.

۳ـ که چیري د یوه لیتر تیلو بیه ۲۵ افغانۍ وي د ۵ لترو تیلو بیه چې یو ګیلن کیږي څو افغانۍ کیږي؟

ځواب: ۲۵ × ۵ = ۱۲۵

۴ـ که چیري د دوو ګیلاسونو شیدو بیه ۲۰ افغانۍ وي یو لیتر څو افغانۍ کیږي؟

ځواب: نو د یوه لیتر شیدو بیه ۴۰ افغانۍ کیږي.

۵ـ دوه لیتره څو ګیلاسه اوبه کیږي؟

ځواب: دوه لیتره ۸ ګیلاس اوبه کیږي.

۶ـ د (أ، آر، اِس) په پاکټونو باندې لیکل شوي دي چې په یوه لیتر اوبو کې حل او کار ورڅخه واخلئ که چیري د لیتر اندازه ونه لرئ د ګیلاسونو په واسطه څرنګه لیتر اندازه کوئ؟

ځواب: څلور ګیلاس یو لیتر اوبه دي.

۷ـ د =، > او < نښو څخه په کار اخیستنې د لاندې لوښو ظرفیت پر تله کړئ!

الف　ب　ت　ث

ب > الف　الف > ت　ب > ت　ب > ث

کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د (أ، آر، اِس) د پاکټونو د حل کولو له پاره د یوه لیتر اندازه کول د ګیلاسونو په واسطه خپلو کورنیو ته وښيي.

ځواب: د زده کوونکو کار دی.

۱۰۴

– ښاغلی ښوونکی په عمومي توګه په لرې ځایونو کې د تیلو په پلورلو او رانیولو کې له بوتل څخه کار اخلي. که چیرې مروجه مختلف بوتلونه چې په محیط کې دې په عملي توګه تر پیمانې لاندې ونیسی ښه به وي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې د کتاب (۱۰۴) مخ په پام کې ونیسی د هغه اړوند پوښتنې په غور سره مطالعه او ځوابونه یې په اړوند ګروپونو کې ولیکي.

ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو د کارونو څارنه وکړي. که چیرې زده کوونکي له کوم ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده

کوونکو ځخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک يو ليتر اوبه پيمانه او ښيې؟

– څوک دوه ليتر اوبه پيمانه او ښيې؟

**مهارت:**

– زده کوونکي وکړای شي د يوه ليتر پيمانه تشخيص او وپيژني او د هغه په واسطه د زياتو ليترو اندازه پيدا کړي.

– زده کوونکي وکړای شي، دوه ليتره، دري ليتره اندازه کړائ شي.

**ذهنيت:**

زده کوونکی د ليتر په پيژندلو سره کولی شي د ډيرو زياتو مايعات اندازه معلومه کړي په دې کار سره خوشحاليږي او د ليتر په برخه کې يې ذهن بدلون مومي.

**ارزښت:**

څرنګه چې د مايعاتو په برخه کې د ليتر کارول ډير ارزښت لري ځکه په هټيو کې د مايعات د پلورلو او رانيولو له پاره کار ورڅخه اخيستل کيږي نو زده کوونکي بايد مايعات لکه غوړي، تيل... او نور د ليترو په حساب غوښتنه وکړي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (۱۰۴) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدايت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د یوه رقمي عددونو ضرب کول په څو رقمي عددونو کې

**اته دیرشم لوست، (۱۰۵) مخ**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي یو رقمي عددونه په څو عددونو کې ضرب کړي.

**اصطلاح ګاني:** یو رقمي، څو رقمي.

**د لوست مرستندوی مواد:** بانک نوټونه، د لسونو او سلونو بنډلونه.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! د یوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. که چیرې زده کوونکو اشتباه کړې وي اشتباه ګانې دې په تخته باندې ولیکل شي. د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو په واسطه پیدا شي له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې صحیح ځوابونه پرتخته تشریح کړي.

– بیا دې ښاغلی ښوونکی له څو زده کوونکو لکه: احمد، کریم، حامد او رحیم څخه پوښتنه وکړي څرنګه کولای شئ د (او، آر، اس) د پاکټ د حل کولو له پاره د یوه لیتر اوبو اندازه کول څېل کورنیو ته وښیاست. که چیرې زده کوونکي یو لیتر اوبه اندازه کړای شي تشویق دې شي. که چیرې ونشي کولئ لارښوونه ورته وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشئ لومړی ګروپ دې د ۲۵ عدد په ۲ کې ضرب کړي، دویم ګروپ دې د ۷۹ عدد په ۳ کې او دریم ګروپ دې د ۸۵ عدد په ۵ کې ضرب کړي. دویم ځلی دې بیا لومړی ګروپ د ۱۷ عدد د ٦ په عدد کې، دویم ګروپ دې د ۱٦۷ عدد د ۳ په عدد کې او دریم ګروپ دې د ۱۲۷ عدد د ٦ په عدد کې ضرب کړي او بیا دې ګروپونه خپل ځوابونه یو له بل سره پرتله کړي ترڅو معلوم

**اته دېرشم لوست: د یوه رقمي عددونو ضرب کول په څو رقمي عددونو کې**

هدف: زده کوونکي وکړای شي یو رقمي عددونه په څو رقمي عددونو کې ضرب کړي.

ګرانو زده‌کوونکو! تاسو مخکې دیوه رقمي عددونو ضرب کول په دوه رقمي عددونو کې زده کړي دي.

اوس غواړو چې د ۲۱۴ درې رقمي عددد ٦ په عدد کې ضرب کړو.

**لومړی:** د ٦ عدد د عدد د یویزو په رقم کې چې ۴ دی ضربوو.

(٦ × ۴=۲۴)



د ۲۴ د عدد د یویزو رقم هم چې ۴ دی د ضرب د حاصل د یویزو په مرتبه کې لیکو او د ۲۴ د لسیزو رقم چې ۲ دی د ۲۱۴ د عدد د لسیزو د مرتبې پورته لیکو.

**دویم:** د ٦ عدد د عدد د لسیزو په رقم کې چې (۱) دی ضرب کوواود ۲ رقم سره چې حاصل نیول شوی دی جمع کوو.

(٦ × ۱) +۲=۸

چې د ۸ عدد حاصل کیږي او د ضرب د حاصل د لسیزو په مرتبه کې یې لیکو.

**دریم:** د ٦ عدد د عدد په سلیزوکې چې ۲ دی ضرب کوو ۱۲=(۲ × ٦) کیږي د ۱۲ د عدد د ۲ رقم د ضرب د حاصل د سلیزو په مرتبه کې او د (۱) رقم یې د زریزو په مرتبه کې لیکو او د ۱۲۸۴ عدد په لاس راځي.




د ۷۰۲ عدد په ۴ کې ضرب او نتیجه یې په لاس راوړئ.




شي چې زده کوونکو پوښتنې صحیح کړي دي او که نه؟

د مثال په توګه: د (۲۱٦) عدد د (۵) په عدد کې ضرب کوو:

```
      ③
   ۲ ۱ ٦
   ×   ۵     ③  ⓪
  ───────
  ۱ ۰ ۸ ۰
```

که چیرې ٦ یوه افغانیزې ۵ برابره یا په ۵ کې ضرب کړو نو د ۳۰ سره مساوي کیږي. او که چیرې یو بنډل د لسي په ۵ کې ضرب کړو نو مساوي د ۵ لسیو یا ۵۰ افغانیو سره کیږي.

که چیرې ۲ سلګونې په ۵ کې ضرب کړو نو ۱۰ سلګونې یا ۱۰۰۰ افغانۍ کیږي.

که چیرې ۳۰ افغانۍ په لسیو بدل کړو ۳ لسیه کیږي.

اوس که چیرې بانک نوټونو ته پاملرنه وکړئ. لیدل کیږي چې ۸ نوټونه د لسیو او د ۱۰ نوټونه د سلګونو په لاس

راځي. دا ښيي چې ټولي ۱۰۸۰ افغانۍ دي.

– ښاغلی ښوونکی! که چیری زده کوونکي د پوښتنو په حل کولو کې له ستونزو سره مخامخ شول د پورتنی مثال په کارولو سره له هغوی سره مرسته او لارښوونه ورته وکړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۴) مخ ته را وګرزوئ چې خپل کتاب خلاص کړي د دې مخ اړوند پوښتنې په خپل ګروپونو کې حل کړي. د حل کولو په وخت کې بحث او مذاکرې وکړي که چیرې زده کوونکي ستونزي ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک د (۳۲٦) عدد د (۴) په عدد کې ضرب کوي؟

– څوک د (۵۰۰) عدد د (۵) په عدد کې ضرب کوي؟

**مهارت:**

زه کوونکي وکړای شي د زبانی ضرب په کارولو سره لاندې څو رقمي عددونه په یوه رقمي عدد کې ضرب کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳۱۸ | ۴۲٦ | ۳۱۷ | ۴۷۸ |
| × ۵ | × ٦ | × ۸ | × ۷ |

**ذهنیت:**

د دې ډول ضرب کولو په پوهیدو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

څرنګه چې زده کوونکي په ورځنۍ ژوند کې د داسې عددونو ضرب کولو ته اړتیا پیدا کوي او د هغو پوهیدل ضروری دي. چې د شیانو پلورلو او رانیولو کې، قیمتونه د ضرب د عملیې په واسطه پیدا کړي. او له نورو سره هم مرسته وکولی شي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (۷۰۲) عدد د (۴) په عدد کې ضرب او نتیجه دې په لاس راوړي.

# سرليک: د يوه رقمي عددونو ضرب کول په څو رقمي عددونو کې

**اته ديرشم لوست، (۱۰٦) مخ**

**دويمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي يو رقمي عددونه په څو رقمي عددونو کې ضرب کړي.

**اصطلاح ګاني:** يو رقمي عددونه، څو رقمي عددونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** کارتونه، بانک نوټونه، د لسيو او سليو بنډلونه او نور محيطي مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو باندې وويشل شي. د يوه ګروپ کورنۍ دنده دې د بل ګروپ د غړو په واسطه وکتل شي. ښاغلی ښوونکی دې د ګروپونو د کار ليدنه وکړي. هغو زده کوونکو چې خپله کورنۍ دنده په ښه توګه سرته رسولې ده تشويق دې شي. هغو زده کوونکو چې اشتباه کړې ده اشتباه ګاني دې صحيح شي او ورته ودې ويل شي چې په راتلونکې کې په دقيقه توګه پام ونيسي.

بيا دې يو زده کوونکی د ټولګي مخې ته را وغوښتل شي. چې خپله کورنۍ دنده د ټولګي پرتخته حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې د يو بل څخه د کاپي کولو مخنوی کوي. دا کار زده کوونکو ته جرئت ورکوي چې خپلې پوښتنې پرتخته نورو ته تشريح کړي. او د تشريح کولو له پاره ځان چمتو کوي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې هر ګروپ دې په خپله يو څلور رقمي عدد وټاکي. لومړی ګروپ دې د ٦ عدد په هم هغه ټاکلی عدد کې، دويم ګروپ دې د ۸ عدد په هغه عدد کې او دريم ګروپ دې د ۷ عدد په هغه عدد کې ضرب کړي. نتيجې دې په لاس راوړي. ښاغلی ښوونکی د کار کولو د جريان ليدنه کوي.

مشتق او تمرين

۱- د ۱۱۲ عدد د ۹ په عدد کې ضرب کړئ!

۲- د ۴۰۸ عدد د ۷ په عدد کې ضرب کړئ!

۳- د ۳۰۰ عدد د ۸ په عدد کې ضرب کړئ!

۴- لاندې پوښتنې حل کړئ!

۱- ۱۱۲ × ۹ = ۱۰۰۸

۲- ۴۰۸ × ۷ = ۲۸۵٦

۳- ۳۰۰ × ۸ = ۲۴۰۰

٦۵۴ × ۷ = ۴۵۷۸ | ۷۴۵ × ٦ = ۴۴۷۰ | ۳۴۱ × ۵ = ۱۷۰۵

۵- د لاندې مثال نه په کار اخستنی سره لاندې پوښتنې حل کړئ.

①⑤⑥

مثال: ۳۸۷۲ × ۸ = ۳۰۹۷٦

۹٦۰۴ × ۷ = ٦۷۲۲۸ | ٦۰۰۲ × ۸ = ۴۸۰۱٦ | ۱۲۸۴ × ۵ = ٦۴۲۰

٦- لاندې پوښتنې حل کړئ!

۷۳۲ × ٦ = ۴۳۹۲ | ۵۱۴ × ۷ = ۳۵۹۸ | ۱۱۷۸ × ۵ = ۵۸۹۰ | ۷۰۴۳ × ۸ = ۵٦۲۴۴

کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې حل کړئ!

۱۷۴ × ۴ = ٦۹٦ | ٦۰۰۲ × ۹ = ۵۴۰۱۸ | ۹۰۴۴ × ۸ = ۷۲۳۵۲

۱۰٦

که چيرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کيږي مرسته او لارښوونه دې وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدايت ورکړئ چې د خپل کتاب (۱۰٦) مخ خلاص کړي بيا دې لومړی ګروپ (۱) ګڼه پوښتنه، دويم ګروپ (۲) ګڼه پوښتنه او دريم ګروپ (۳) ګڼه پوښتنه په خپل ګروپونو کې حل کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې په ټولګي کې ګرځي او را ګرځي که چيرې زده کوونکي کومه پوښتنه ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي. بيا دې له هر ګروپ څخه يو، يو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي.

**۲– مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام بيا هم د کتاب (۱۰٦) مخ ته را وګرزوئ. (۵ او ٦) ګڼې پوښتنې په خپل ګروپونو کې حل کړي. ښاغلی ښوونکی د کار څخه کتنه کوي. که چيرې کوم زده کوونکی پوښتنه ولري. مرسته او

لاربنوونه دې وکړي.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لاربنوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک د ۱۰۷۴۶، ۲۰۵۱، ۹٦۸۷۳ او ۷٦۴ په عددونو کې د څلور رقمي او پنځه رقمي عددونه ښيي؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د ۷٦۴۳ عدد د ۷ په عدد کې ضرب کړي.

- زده کوونکی وکړای شي د (۱۲۷×۸) د ضرب عمليه سرته ورسوي.

**ذهنيت:**

زده کوونکي د دې ډول ضرب کولو په پوهيدو خوښي کوي او په ذهن کې يې بدلون را منځ ته کيږي.

**ارزښت:**

څرنگه چې زده کوونکي د داسې عمليو سره مخامخ کيږي نو د هغو په ژوند کې ډير ارزښت لري اودې ته اړتيا پيدا کوي چې د پلورلو او رانيولو په وخت کې په حساب کولو کې اشتباه ونه کړي په سمه توگه حساب کړای شي. په پلورلو او رانيولو کې په دقيقه توگه حساب وکړي د خپل ځان او يا د نورو ستونزي حل کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي د کتاب (۱۰۸) مخ کورنۍ دنده په صحيح توگه سرته ورسوي او له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: د دوه رقمي عددونو ضرب کول په دوه رقمي عددونو کې

**نه دیرشم لوست، (۱۰۷ ، ۱۰۸) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه په دوه رقمي عددونو کې ضرب کړي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لسیو، سلیو بنډلونه، کارتونه، بانک نوټونه.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی په دري ګروپونو باندې وویشه د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو په واسطه وکتل شي. له کار څخه کتنه وکړئ، کومې اشتباه ګانې چې زده کوونکي یې په ګوته کړي پرتخته ولیکی. که چیرې زده کوونکي په حل کولو کې ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست، چې په خپل ګروپونو کې دري مختلف دوه رقمي عددونه ولیکي هر عدد چې لیکي ولولی، چې له څو یویز او څو لسیز څخه جوړ شوي دی. ښاغلی ښوونکی دې له ګروپونو څخه کتنه وکړي که چیری زده کونکي مشکل ولري لارښوونه دې وکړي. او هم ورته وواياست: د ۶ + ۱۰ =۱۶ پوښتنه صحیح ده او که نه؟

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې د ۲۳ عدد لومړی په ۶ کې ضرب کړئ او بیا یې د ۲۳ عدد د ۱۰ په عدد کې ضرب کړئ. او د دواړو د ضرب حاصل یو له بله سره جمع او نتیجه په لاس راوړئ.

– ښاغلی ښوونکی دې پام ونیسی که چیرې زده کوونکي

**نه دیرشم لوست: د دوه رقمي عددونو ضرب کول په دوه رقمي عددونو کې**

هدف: زده کوونکي وکړی شي دوه رقمي عددونه په دوه رقمي عددونو کې ضرب کړي.

۱ مثال: غواړو د ۲۳ عدد د ۱۶ په عدد کې ضرب کړو.

لومړی:

د ۱۶ د عدد دیویزو مرتبه چې د ٦ عدد دي د یوه رقمي او دوه رقمي عددونو د ضرب په ډول سره ضرب وو چې د ضرب حاصل یې ۱۳۸ کیږي.

```
   ۲۳
 × ۱۶
 ────
  ۱۳۸
```

دویم:

د ۱۶ د عدد دلسیزو مرتبه چې د ۱ عدد دی د ۲۳ په عدد کې ضرب کوو چې په حقیقت کې د ۱۰ ضرب کول په ۲۳ کې دی چې د ضرب د حاصل د ۳ رقم یې د لسیزو د مرتبې لاندې او د ۲ رقم یې د سلیزو د مرتبې لاندې لیکو په پای کې د ۱۳۸ ،او ۲۳ د جمعې حاصل په لاس راوړو په نتیجه کې د ۳٦۸ عدد حاصل کیږي. چې د ۱ د ۱٦ او ۲۳ عددونو د ضرب حاصل دی.

```
   ۲۳
 × ۱۶
 ────
  ۱۳۸
 +۲۳
 ────
  ۳٦۸
```




لاندې پوښتنې حل کړئ!

```
   ۲۵          ۱۹  ②         ۱۵
 × ۱۱        × ۱۳          × ۲۱
 ────        ────          ────
   ۲۵          ۵۷            ۱۵
 + ۲۵        + ۱۹          + ۳۰
 ────        ────          ────
  ۲۷۵         ۲۴۷           ۳۱۵
```




اشتباه کوي لارښوونه ورته وکړئ. په دویم وارې دې بیا ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووايي چې اوس د ۲۳ عدد د ۱٦ په عدد کې ضرب کړئ او د ضرب حاصل په لاس راوړئ که چیرې زده کوونکي ستونزي ولري ښاغلی ښوونکی دې د پوښتنو د حل طریقه ورته وښیې. او یا دې د ۱۰۷ مخ مثال ورته تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زه کوونکو ته هدایت ورکړئ وروستی فعالیتونه چې د ۲۳ د عدد ضرب کول د ٦ او ۱۰ په عددونو کې وو. په ډیر دقت سره یې په پام کې ونیسي. او هم د ۲۳ د عدد ضربول چې د ۱٦ له عدد سره وو. دواړه یو له بله سره پرتله کړی. ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی باید له دې پرتله کولو څخه دې نتیجې ته ورسیږي چې د دواړو نتیجه یا د ضرب حاصل عینی عدد دئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې د کتاب (۱۰۷) مخ خلاص کړي او مطالعه یې کړي او له یوه

زده کوونکي مثلاً احمد څخه دې پوښتنه وکړي چې د دې مخ له مطالعې څخه دې څه شئ زده کړل. دا مثال خپل نورو ټولګیوالو ته تشریح کړه. که چیري د مثال په تشریح کولو کې ستونزي ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته وواياست چې د (۱۰۷) مخ پوښتنې په خپل ګروپونو کې حل کړي. ښاغلی ښوونکی د پوښتنو د حل د جریان مراقبت کوي که چیري زده کوونکي اشتباه کوي مرسته دې ورسره وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلي ښوونکي! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰۸) مخ ته را وګرزوئ. ورته وواياست چې هغه په ډېر دقت سره مطالعه کړي. د دې مخ لومړی حالت چې د ۴۰×۳۰ د ضرب عملیه ده زده کوونکو ته دې تشریح کړي بیا دې ورته ووايي چې اوس د ۵۰ د عدد او د ۸۰ د عدد د ضرب حاصل پیدا کړئ او عملیه یې سرته ورسوئ.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

څوک یو څلور رقمي عدد لیکي او په یو، یو رقمي عدد کې ضرب کوي.

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې عددونه ضرب کړي او د ضرب حاصل یې په لاس راوړي.

د ۱۸۸۶۲ عدد په ۸ کې ضرب کړي.

د ۱۲۳۰۰ عدد په ۷ کې ضرب کړي.

د ۷۶۸۷ عدد په ۹ کې ضرب کړي.

**ذهنیت:**

د داسې عددونو د ضرب په پیدا کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

ددې له پاره چې صفر لرونکي عددونه په آسانۍ سره ضرب کړای شو لاندې مثال په نظر کې نیسو.

۴۰ × ۳۰ =؟

لومړی حالت:

۴۰
× ۳۰
۰۰
+ ۱۲۰
۱۲۰۰

دویم حالت:

۴۰×۳۰ =؟

په دې حالت کې د عددونو صفرونه په نظر کې نه نیسو یوازې د ۳ او ۴ رقمونه یو له بل سره ضرب کوو یعنی (۱۲=۳ × ۴)

بیا د ضرب د دواړو اجزاوو د صفرونو په شمېر د ضرب د حاصل مخې ته لیکو یعنې. ۴۰ × ۳۰=۱۲۰۰

کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې د حل شوي مثال په کار اخستنې سره په خپلو کتابچوکې حل کړئ!

① ۶۳۰ × ۴۰ = ۲۵۲۰۰

④ ۹۸ × ۶۰ = ۵۸۸۰

۸۰ × ۷۰ = ۵۶۰۰

۱۰۰۰ × ۱۰۰ = ۱۰۰۰۰۰

۳۰۰ × ۷۰ = ۲۱۰۰۰

۱۰۸

**ارزښت:**

د دې ډول عددونه چې څو رقمي په یوه رقمي کې ضرب کړي او د ضرب حاصل یې په لاس راوړي د زده کوونکو له پاره ډېر ارزښت لري زده کوونکي کولای شي برسیره پر دې چې نورو ټولګیو کې مشکل نه وینی په پلورلو او رانیولو کې خپل او د نورو ستونزي حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د (۱۰۸) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د دوه رقمي عددونو ضرب کول په دوه رقمي عددونو کې

**نه دیرشم لوست، (۱۰۹ ، ۱۱۰) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی وکړای شي دوه رقمي عددونه په دوه رقمي عددونو کې ضرب کړي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي عددونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوتې، د لس ګونو او سلګونو بنډلونه، بانک نوټونه، کارتونه.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په دري ګروپونو باندې وویشي. د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو له خوا وکتل شي. هغو زده کوونکو چې اشتباه کړې وي یا یې دنده سرته نه وي رسولې. ښاغلی ښوونکی دې د هغو اشتباه ګاني پرتخته تشریح کړي او د هغو پام دې خپل مسئولیت ته را وګرزوي. بیا هم که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې ورته وشي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې د خپل د کتاب (۱۰۹) مخ خلاص کړي. (۱)، (۲) او (۳) ګڼې پوښتنې دې په خپل اړوند ګروپونو کې حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار کولو د جریان کتنه کوي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی د (۱۱۰) مخ د (۴) پوښتنې په برخه کې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ کوشش وکړئ چې دې پوښتنو ته زده کوونکي په شفاهي توګه ځواب ووایي.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست چې د

مشق او تمرین

۱. د لاندې عددونو د ضرب حاصل په لاس راوړئ!

الف: ۳۰ او ۴۰ — ۴۰ × ۳۰ = ۱۲۰۰ ذ: ۱۰ او ۲۰۰ — ۲۰۰ × ۱۰ = ۲۰۰۰

ب: ۶۱ او ۹۰ — ۶۱ × ۹۰ = ۵۴۹۰ ر: ۶۳ او ۱۰۰ — ۶۳ × ۱۰۰ = ۶۳۰۰

د: ۶۰ او ۳۰۰ — ۳۰۰ × ۶۰ = ۱۸۰۰۰ ز: ۷۲او ۸۰ — ۷۲ × ۸۰ = ۵۷۸۰

۲. د ضرب د حاصل په کارولو سره لاندې تش ځایونه د حل شوی مثال په ډول د مناسبو صفرونو په شمیر سره ډک کړئ.

مثال: ۴۲۰۰- [۰] ۶۰×۷

ج: ۴۰۰۰- [۰] ۸ × [۰] ۵ الف: ۴۲۰۰- [۰] ۷۰×۶

د: ۷۳۰۰- ×۷۳ [۰۰] ۱ ب: ۶۵۰- [۰] ۶۵×۱

هـ: ۲۰۰- [۰] ۴×۵

کورنۍ دنده

څو دوه رقمي عددونه چې د هغو ښی خواته صفر وي ولیکی، بیا یې یو له بله سره ضرب کړئ او د ضرب حاصل یې لاس ته راوړئ.

۵۰ × ۶۰ = ۳۰۰

۱۰۹

(۱۱۰) مخ (۵) ګڼه پوښتنه په اړوند ګروپونو کې په ډیر دقت سره مطالعه کړي. او د کتاب له هدایت سره سم کار وکړي. که چیرې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی خپل ځان ډاډمن کړي وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوښته:**

– څوک دوه رقمي عدد په دوه رقمي عدد کې ضرب کوي او د هغو د ضرب په حاصل کې د ارقامو مقامي قیمت ښیي؟

– څوک وایي چې د دوه رقمي عددونو په ضرب کې لومړی کوم عدد او دویم ځلی کوم عدد په ترتیب سره

ضرب کېږي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې دوه رقمي عددونه يو له بله سره ضرب کړي او د ضرب حاصل يې په لاس راوړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٢٨ | ٦٨ | ٧٨ | ٦٨ |
| × ٤٥ | × ٣٦ | × ٥٦ | × ٧٤ |

**ذهنيت:**

د دوو، دوه رقمي عددونو د ضرب حاصل په پيدا کولو او د هغو د طريقي په پوهيدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د دوه رقمي عددونو د ضرب د حاصل پيدا کول د هغو په ورځنی ژوند کې ډېر ارزښت لري د شيانو د پلورلو او رانيولو په وخت کې کار ورڅخه اخلي له دې لاري خپل او د نورو ستونزي حل کوي.

**۴- کورنۍ دنده:**

د کتاب د (۱۱۰) مخ کورنۍ دنده دې د کتاب له هدايت سره سم حل او له ځانو سره دي راوړي.

مشق او تمرين

۳. لاندې پوښتنو ته په شفاهي توګه ځواب ووایاست.

| | | |
|---|---|---|
| ١٠×٠=? | ١×٧=? | ٢×٥=? |
| ٨٠×٠=? | ١×٢٢=? | ٥٠×٢٠=? |
| ١٠×٥٠=? | ٣٢×١=? | ٨٠×٤٠=? |
| ٠×١=? | ٨٠×١٠=? | ٧٠×٤٠=? |
| ١٤٠×٠=? | ٩٠×٢٠=? | ٦٠×٨=? |
| ٢٢×٢٠=? | ١١×١=? | ٤٠×٩٠=? |
| ٣٠×٠=? | | |
| ٢٠×٢٢٠=? | | |

۴. الف: د لاندې شکل له مخې د ضرب يوه پوښتنه وليکئ او د ضرب عمليه په هغه باندې سرته ورسوئ.

٠ ١٠ ٢٠ ٣٠ ٤٠ ٥٠ ٦٠ ٧٠ ٨٠

١٠ × ٧ = ٧٠

ب: لاندې پوښتنه ضرب کړئ او په شکل کې وښياست.

٣ × ١٠ = ?

٠ ١٠ ٢٠ ٣٠ ٤٠ ٥٠ ٦٠

کورنی دنده

۵. لاندې پوښتنې حل کړئ!

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٣١ | ٦٣ | ٩٥ | ٨٠ |
| × ٢٢ | × ٣٥ | × ٢٧ | × ٤٠ |
| ٦٢ | ٣١٥ | ٦٦٥ | ٣٠٠ |
| + ٦٢ | + ١٨٩ | + ١٩٠ | + ٢٠ |
| ٦٨٢ | ٢٢٠٥ | ٢٥٦٥ | ٣٢٠٠ |

١١٠

# سرلیک: د دوو رقمي عددونو ضرب کول په درې رقمي عددونو کې

**څلوېښتم لوست، (۱۱۱) مخ**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه په درې رقمي عددونو کې ضرب کړي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، درې رقمي.

**د لوست مرستندوی مواد:** بانک نوټونه، د لسيو، سليو، بنډلونه او نور محيطی مواد.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وويشئ او ورته ووایاست. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو په واسطه وکتل شي. هغو زده کوونکو چې اشتباه کړي ده د هغو اشتباه ګاني دې په تخته باندې وليکل شي. بیا دې د اشتباه ګانو صحيح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پيدا شي. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورته وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي:

۱– ۱۲دانې۲۰ افغانيزه نوټونه څو افغانۍ کيږي د ضرب عمليه سرته ورسوئ او د ضرب حاصل ووایاست؟

۲– ۱۰ دانې ۲۰ افغانيزه نوټونه څو افغانۍ کيږي د ضرب عمليه سرته ورسوئ او د ضرب حاصل په لاس راوړئ؟

۳– ۲ دانې ۲۰ افغانيزه نوټونه څو افغانۍ کيږي د ضرب د عمليې د سرته رسولو وروسته د ضرب حاصل پيدا کړئ.

۴– ۲ دانې ۲۰ افغانيزه نوټونه او ۱۰ دانې ۲۰ افغانيزه نوټونه چې سره يو ځای شي ټوله څو افغانۍ کيږي؟

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست د لومړی او څلورمي پوښتنو ځوابونه یو له بله سره پرتله کړی.

**څلوېښتم لوست: د دوه رقمي عددونو ضرب په درې رقمي عددونو کې**

هدف : زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه په درې رقمې عددونو کې ضرب کړي.

تاسو په تير لوستونو کې ديوه رقمي او دوه رقمي عددونو ضرب له دوه رقمي عددونو سره زده کړل او د هغه په طريقه باندې پوه شوی یاست اوس درې رقمې عددونه له دوه رقمي عددونو سره ضرب کوو.

| |
|---|
| ۷۶۵ |
| × ۵۸ |
| ۶۱۲۰ |
| + ۳۸۲۵ |
| ۴۴۳۷۰ |

مثال: غواړو چې د ۷۶۵ عدد د ۵۸ له عدد سره ضرب کړو.

لومړی د۵۸ د عدد د يويزو رقم یعنې ۸ د ۷۶۵ په عدد کې ضرب کوو چې د۶۱۲۰ عدد په لاس راځي بیاد ۵۸ د عدد ،دلسيزو رقم يعنی ۵د ۷۶۵ په عددکې ضرب کوو. چې د ۳۸۲۵ عدد حاصليږي. چې ددې عدد د يويزو رقم د ۶۱۲۰ د عدد د لسيزو تر مرتبې لاندې ليکو په پای کې دواړه لاس ته راغلی عددونه يوله بله سره جمع کوو چې د ۴۴۳۷۰ عدد لاس ته راځي.




لاندې درکړل شوی عددونه يو له بله سره ضرب کړئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۹۰۰ | ۸۴۰ | ۲۰۸ | ۱۳۶ | ۶۰۱ | ۷۲۵ | ۹۱۰ |
| × ۷۱ | × ۶۷ | × ۹۶ | × ۲۷ | × ۱۴ | × ۲۰ | × ۶۲ |
| ۹۰۰ | ۵۸۸۰ | ۱۲۴۸ | ۹۵۲ | ۲۴۰۴ | ۰۰۰ | ۱۸۲۰ |
| + ۶۳۰۰ | + ۵۰۴۰ | + ۱۸۷۲ | + ۲۷۲ | + ۶۰۱ | + ۱۴۵۰ | + ۵۴۶۰ |
| ۶۳۹۰۰ | ۵۶۲۸۰ | ۱۹۹۶۸ | ۳۶۷۲ | ۸۴۱۴ | ۱۴۵۰۰ | ۵۶۴۲۰ |

کورنۍ دنده

يو کس په يوه ورځ کې ۳۲ کميسونه پلوری په يوه مياشت کې به څوکميسونه وپلوری




په دې صورت کې زده کوونکي بايد پيدا کړای شي چې د دواړو پوښتنو ځواب عينی عدد يعنې ۲۴۰ کيږي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي بايد پورتنۍ عمليې په خپلو ګروپونو کې سرته ورسوي ترڅو قناعت يې حاصل شي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳۶=۳۰+۶ → ۳۶ | ۳۰ | ۶ | ۶۰ |
| × ۲ | × ۲ | × ۲ | + ۱۲ |
| ۷۲ | ۶۰ | ۱۲ | ۷۲ |

يعنی که چيري د ۳۶ عدد په ۲ کې ضرب کړو او يا که چيری د ۲ عدد لومړی د يويزو په مرتبه يعنی ۶ کې ضرب کړو او بيا يې په لسيزو يعنی ۳ کې ضرب کړو او د دواړو مرتبو د ضرب حاصل يو له بله سره جمع کړو. نو د ضرب حاصل په لاس راځي. چې د پورته د ضرب له حاصل سره توپير نه لري عينی عدد دی.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي د (۷۶۵) عدد د يوي افغانيزې، لسيو او سليو د بانک نوټونو کارتونو په

واسطه وښیاست. او همدارنګه د ۵۸ عدد د یوی افغانیزي او لسیو بانک نوټونو کارتونو په واسطه وښیاست بیا دې ۷۶۵ عدد ۸ برابره یعنی په ۸ کې ضرب کړي چې څو افغانۍ کیږي زده کوونکي باید د ۶۱۲۰ عدد په لاس راوړي. او دویم واري دې د ۷۶۵ عدد د ۵۰ په عدد کې ضرب کړي که چیري زده کوونکي ستونزي ولري د صفر لرونکو عددونو د ضرب څخه کار واخلۍ چې باید د ۳۲۸۵۰ عدد په لاس راوړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست اوس د کتاب (۱۱۱) مخ ته پاملرنه وکړی چې په هغه کې د (۵۸×۷۶۵) د ضرب حاصل تشریح شوی او په لاس راغلی دی تاسو خپل په لاس راوړی ځواب له هغه سره پرتله کړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۱) مخ ته را وګرزوئ ورته ووایاست چې د (۵۸×۷۶۵) د حل طریقه په نظر کې ونیسئ د دې طریقې څخه په کار اخستنی سره د کیڼی خوا دري پوښتنې دې لومړی ګروپ، دوه منځنۍ پوښتنې دې دویم ګروپ او د ښۍ خوا دوه پوښتنې دې دریم ګروپ حل کړي. که چیری زده کوونکي د پوښتنو په حلولو کې ستونزي ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د (۵۶۷۸، ۳۴۲، ۷۹۸۱۵، ۲۸، ۷۸۹۶۵) په عددونو کې دوه رقمي او دری رقمي عددونه ښيې؟

– څوک د ۹۸۵ په عدد کې یویز، لسیز او سلیز ښيې؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې عددونه ضرب او د ضرب حاصل یې پیدا کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۶۸۹ | ۲۸۵ | ۳۷۸ | ۵۷۴ |
| × ۷۶ | × ۵۷ | × ۶۳ | × ۶ |

**ذهنیت:**

د دې دوه رقمي او درې رقمي عددونو په ضرب کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دوه رقمې او دري رقمی عددونو د ضرب کولو څخه په خپل ورځنۍ ژوند کې کار اخلي په ورځنۍ راکړه او ورکړه کې خپل یا د نورو ستونزي حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

یو تن په یوه ورځ کې ۳۲ کمیسونه پلوري په یوه میاشت کې په څو کمیسونه وپلوري؟

# سرلیک: د دوو رقمي عددونو ضرب کول په درې رقمي عددونو کې

**څلویښتم لوست، (۱۱۲ ، ۱۱۳) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه په درې عددونو کې ضرب کړي.

**اصطلاح ګاني:** دوه رقمي، درې رقمي

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوست کتاب، بانک نوټونه.

**۱- فعالیتونه:**

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو وویشئ. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ په واسطه وکتل شي. اشتباه ګاني پر تخته ولیکئ، په ترتیب سره د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا کړئ. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري لارښوونه ورته وکړئ.

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د خپل کتاب (۱۱۲) مخ خلاص کړي او (۱) ګڼه پوښتنه په خپل ګروپونو کې حل کړي او ځوابونه دې یو له بل سره پرتله کړي که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته ورسره وکړي.

- بیا دې د همدې مخ (۲) ګڼه پوښتنه لومړی ګروپ، (۳) ګڼه پوښتنه دویم ګروپ او (۴) ګڼه پوښتنه دریم ګروپ په خپل ګروپونو کې حل کړي لومړی او دویم ګروپونه دې د پوښتنو ځوابونه د بانک نوټونو کارتونو په واسطه پیدا او وښیي، او په صحیح توګه دې حساب کړي. وروسته له هر ګروپ څخه دې یو، یو تن خپل د ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې زده کوونکي

مشق او تمرین

۱. لاندې درکړل شوي عددونه یو له بله سره ضرب کړئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۷٦۴ × ۷۳ | ۱۷۳ × ٦۴ | ۱۰۱ × ۷۳ | ۹۰۰ × ۱۰ |
| ۲۲۹۲ + ۵۳۴۸ = ۵۵۷۷۲ | ٦۹۲ + ۱۰۳۸ = ۱۱۰۷۲ | ۳۰۳ + ۷۰۷ = ۷۳۷۳ | ۹۰۰۰ |
| ۷۰۴ × ٦۲ | ۱۰۲ × ۴۴ | ۱۹۸ × ۸۷ | ٦۸۷ × ۹۸ |
| ۱۴۰۸ + ۴۲۲۴ = ۴۳٦۴۸ | ۴۰۸ + ۴۰۸ = ۴۴۸۸ | ۱۳۸٦ + ۱۵۸۴ = ۱۷۲۲٦ | ۵۵۹٦ + ٦۱۸۳ = ٦۷۴۲٦ |

۲. که چیرې د یوې نکلي چاینکۍ بیه ۱۵۷ افغانۍ وي د یوه درجن (۱۲ دانو) بیه به څو افغانۍ وي؟

۱۵۷ × ۱۲ = ۳۱۴ + ۱۵۷ = ۱۸۸۴

۳. که چیرې د یوه صندوق منو بیه ۲۱۸ افغانۍ وي د ۹۰ صندوقونو بیه معلومه کړئ؟

ځواب: ۲۱۸×۹۰=۱۹٦۲۰

۴. شریف د یوې زغاستې په مسابقه کې ٦۰ متره لاره په یوه دقیقه کې وهي معلوم یې کړئ چې په یوه ګړۍ (ساعت) کې به څو متره لاره ووهي؟

ځواب: ۳٦۰۰ متره = ٦۰ × ٦۰

۵. د یوه قطۍ ګوګړو بیه یوه افغانۍ ده د یوه درجن (۱۰ قطیو) بیه څو افغانۍ کیږي.

ځواب: ۱۰ = ۱ × ۱۰

۱۱۲

له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۲- مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! بیا هم د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۲ او ۱۱۳) مخونو ته را وګرزوئ د (۱۱۲) مخ (۵) ګڼه پوښتنه لومړي ګروپ ته او د (۱۱۳) مخ (٦) ګڼه پوښتنه دویم ګروپ ته ۷ او ۸ ګڼې پوښتنې دریم ګروپ ته ورکړئ چې په خپل ګروپونو کې په ګډه سره کار وکړي او حل یې کړي. بیا دې یو، یو داوطلب زده کوونکی خپل د ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. که چیرې ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو

شخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک د یوه ماشین قیمت چې ۹۷۸ افغانۍ دي د بانک نوټونو په واسطه یې ښيي او شیمري؟

– څوک وایي د دوه رقمي او درې رقمي عددونو په ضربولو کې لومړی کوم، دویم کوم عدد په درې رقمې عدد کې ضرب کیږي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي د پورته پوهې په اخستلو سره لاندې عددونه ضرب کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۹۰۹ | ۸۷۸ | ۷۸۴ | ۶۳۴ |
| × ۹٦ | × ٦۷ | × ۵۷ | × ۴۸ |

**ذهنیت:**

د دې ډول دوه رقمې او درې رقمې عددونو په ضربولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښی کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې پوهې او مهارت څخه په خپل ورځنۍ معاملو کې کار اخلی. د پلورلو او رانیولو په وخت کې د ضرب دې طریقې ته پاملرنه کوي خپل او د نورو ستونزې حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د (۱۱۳) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم حل او سبا ته دې له ځانو سره راوړي.

۶. د یوه کیلو گرام غوړیو بیه ۴۰ افغانۍ ده د ۱۲ کیلو گرام غوړیو بیه څو افغانۍ کیږي.

ځواب: ۴۸۰ = ۴۰ × ۱۲

۷. یو پلورونکی په یوه ورځ کې ۲۰۰ افغانۍ گټه لري او په یوه ورځ کې ۱۹۰ افغانۍ خرڅ لري معلوم یې کړئ چې په یوه میاشت کې څو افغانۍ سپمولای شي؟

ځواب: ۳۸۰۰۰ = ۲۰۰ × ۱۹۰

۸. یو تن په یوه شپه او ورځ کې ۳۲ رکعته لمونځ کوي په یوه میاشت کې به څو رکعته لمونځ وکړي؟

ځواب: ۹۶۰ رکعته لمونځ = ۳۰ × ۳۲




۱_ که چېرې یوه کورنۍ په ورځ کې ۱۰۰ گرامه بوره مصرف کړي معلوم یې کړئ چې په یوه میاشت کې به څو گرامه بوره په مصرف ورسوي.

ځواب: ۳۰۰۰ گرامه بوره = ۳۰ × ۱۰۰






# سرلیک: د تقسیم عملیه

**یو څلویښتم لوست، (۱۱۴ ، ۱۱۵) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د تقسیم په مفهوم باندې پوه شي او وکولی شي د تقسیم د عملیې په واسطه خپلې ورځنۍ ستونزې حل کړي.

**اصطلاح ګاني:** ویش (تقسیم)، مفهوم.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، بانک نوټونه، د لسیو، سلیو بنډلونه وړې ډبرې او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی دې په درې ګروپونو باندې وویشل شي. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو په واسطه وکتل شي. هغو زده کوونکو چې کار یې نه دی کړی یا یې اشتباه کړې وي اشتباه دې د تختې په مخ باندې تشریح شي. نورو زده کوونکو ته دې وویل شي چې بیا د کورنۍ دندې په برخه کې بې پروایي ونه کړي.

– ښاغلی ښوونکی! د لومړی ګروپ زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې ۱۵ داني وړی ډبرې په خپل میز باندې کښېږدي. او بیا په میز باندې په دریو مختلف ځایونو یوه، یوه دانه جلا، جلا کښېږدي دې فعالیت ته دې تر هغه وخت پورې په تکراري توګه دوام ورکړي چې ۱۵ داني ډبرې خلاصې شي اډ مرحلې دې په ترتیب سره کار وکړي. او د هرې مرحلې شمیر دې له لومړۍ څخه تر پای پورې ولیکي. بیا دې د لاندې پوښتنو ځوابونه په خپل ګروپونو کې ولیکي.

– لومړی څو داني وړې ډبرې وې؟ (ځواب ۱۵ دانې)

– په هر واري یا مرحلې څخه وروسته په ترتیب څو، څو داني پاتې شوې؟ (ځواب: ۳، ۳ دانې)

– په هر ځای کې څو، څو داني ډبرې شتوالی لري؟ (ځواب ۱۲، ۹، ٦، ۳،۰)

– له څو وارو یا مرحلو وروسته ډبرې خلاصې شوې؟ (ځواب: له ۵ وار وروسته).

– په هر ځای کې څو، څو داني ډبرې شتوالی لري؟ (ځواب: ۵، ۵ دانې).

– اوس وواياست چې ۱۵ داني وړې ډبرې په څو ګروپونو وویشل شوې او هر ګروپ ته څو، څو داني رسیدلې دي؟ (ځواب: ۱۵ داني په درې ګروپونو وویشل شوې) او هر ګروپ ته ۵، ۵ دانې رسیدلې دي؟

– اوس د نوموړي فعالیت ځواب د ریاضي په شکل ولیکئ.

ځواب:

```
 ۳  | ۱۵
----|
 ۵  | ۱۵ −
    ------
      ×
```

پوښتنه وکړئ څو داني ۳، مساوي له ۱۵ سره کیږي (ځواب: ۱۵= ۳×۵ کیږي)

ښاغلی ښوونکی! که چیرې زده کوونکي د پورته فعالیت په جریان کې له کوم ستونزې سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

## یوولسم فصل

**یو څلویښتم لوست: د تقسیم عملیه**

**هدف:** زده کوونکي د تقسیم په مفهوم باندې پوه شي او وکولی شي د تقسیم د عملیې په واسطه خپلې ورځنۍ ستونزې حل کړي.

**د زده کوونکو فعالیت په ټولګي کې**

- درې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته ودرېږي.
- ښاغلی ښوونکی دې ۱۲ دانې لوبیاوې، وړې ډبرې او یا د محیطي نور مواد په لاس کې ونیسي. په لومړي وار دې هر زده کوونکي ته یوه، یوه دانه لوبیا ورکړي.
- دویم وار دې له پاتی شوي ۹ دانو څخه یوه، یوه دانه هر زده کوونکي ته ورکړي. ۹=۳−۱۲، ٦=۳−۹
- دریم وار دې له ٦ پاتې شوو څخه یوه، یوه دانه هر زده کونکي ته ورکړي. ۳=۳−٦
- څلورم وار دې له ۳ پاتې شوو څخه یوه، یوه دانه هر زده کوونکي ته ورکړي. ۰=۳−۳

په پای کې:

- هر زده کونکي ته څو دانې لوبیا وې یا نور مواد رسیدلي دي؟
- د تفریق عملیه څو وارې سرته رسول شوي ده؟
- د څو وارې ۳ له ضرب کولو څخه د ۱۲ عدد لاس ته راځي.
- په ټولو حالاتوکې مو ولیدل چې د ۱۲ له عدد څخه ۳ څلور وارې تفریق شوی او یا ۳ څلور وارې د ۱۲ په عدد کې شامل دی د تفریق دا تکراري عملیه د تقسیم په توګه داسې لیکو:

۴=۳÷۱۲ (۱۲ ← مقسوم، ۳ ← مقسوم علیه، ۴ ← د تقسیم حاصل)

باید پوه شو چې د ۱۲ عدد دمقسوم، د ۳ عدد مقسوم علیه او د ۴ عدد د تقسیم د حاصل یا خارج قسمت په نامه یادیږي.



– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدایت ورکړئ د خپل کتاب (۱۱۴) مخ ته پام وکړي او خلاص یې کړي په ډیر غور سره یې مطالعه کړي. ښاغلی ښوونکی د کتاب فعالیت د دری زده کوونکو په واسطه عملي او سرته ورسوئ.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۵) مخ ته راواړوی د دې مخ (۱) پوښتنه لومړی ګروپ ته، (۲) پوښتنه دویم ګروپ ته او (۳) پوښتنه دریم ګروپ ته ورکړئ چې په خپل ګروپونو کې د موادو په واسطه یې ترتیب او تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړي. ښاغلی ښوونکی د کار کولو د جریان څارنه کوي که چیري زده کوونکي کوم ستونزي ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

پوښتنې:

۱. د درکړل شوي شکل له مخې د ویش ځواب ولیکی

۱۲÷۴=۳

۲. په تش ځایونو کې مناسب عدد ونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په هغه کې مقسوم، مقسوم علیه او خارج قسمت وښیاست.

۲۰÷۴=۵

۲۰÷۵=۴

۳. پورته شکل او حل شوی پوښتنې څخه په کار اخیستنې سره تش ځایونه به په مناسب عددونو سره په خپلو کتابچو کې ډك کړئ.

۲۴÷۴=۶

۲۴÷۶=۴

۱۱۵

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډه شی چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک پوهیږي که چیري یو عدد په بل عدد ویشل کیږي څه مفهوم لري یا د یوه عدد ویشل په بل عدد باندې څه مفهوم لري؟

– څوک د ویش (تقسیم) په یوه عملیه کې مقسوم، مقسوم علیه او خارج قسمت ښیي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د تقسیم لاندې عملیې سرته ورسوي او خارج قسمت یې په لاس راوړي:

۲۴÷۴=?، ۲۵÷۵=?، ۲۴÷٦=?، ۳۰÷۵=?، ۳۵÷۵=?

**ذهنیت:**

د تقسیم د دې عملیې په سرته رسولو او په مساوي توګه د شیانو په ویشلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او ډاډ تر لاسه کوي. خوښي کوي.

**ارزښت:**

د ویش (تقسیم) عملیه په ژوند کې ډیر ارزښت لري زده کوونکي کولئ شی په ورځني ژوند کې کار ورڅخه واخلي هغوی شیان په مساوي توګه ویشي، هر چا ته خپل حق ورکوي. هغوی پوه پیدا کوي چې په مساوی ویشلو کې د چا حق نه ضایع کیږي.

**۴– کورنی دنده:**

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست په خپل کور کې څو دانې لوبیا یا نور شیان په خپله خوښه د خپل کورنی د غړو په منځ کې په مساوي توګه وویشي خپل کړی کار سبا ته تشریح کړئ.

# سرليک: د تقسیم عملیه

**یو څلوېښتم لوست، (۱۱۶) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي د تقسیم په مفهوم پوه شي او وکولئ شي د تقسیم د عملیې په واسطه خپلې ورځنۍ ستونزې حل کړي.

**اصطلاح ګانې:** تقسیم، د ویش حاصل (خارج قسمت).

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، د لرګوټو بنډلونه او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی له ۵ زده کوونکو یا ۱۰ زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې څو دانې لوبیا یې د کورنۍ څو غړو ته ویشلي دي او هر یوه ته څو دانې لوبیا رسیدلې دي. او په پای کې څه شی پاتې شوي او که نه؟

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو وویشئ زده کوونکو ته ووایاست چې د □ = ۴ ÷ ۲۸ عملیې ته وګوري ووایاست چې په □ تش ځای کې کوم عدد باید ولیکل شي. او هغه د څه شی په نامه یادیږي بیا دې زده کوونکي ۲۸ دانې لوبیا او یا نور محیطي مواد واخلي د خپل ګروپ ۴ زده کوونکو ته دې په ترتیب سره یوه، یوه دانه ورکړي ترڅو لوبیا خلاص شي. او په پای کې دې وشمیرئ چې هر زده کوونکي ته څو دانې لوبیا رسیدلې دي. او پوښتنه وکړئ چې د هر زده کوونکي د دانو شمیر څه شی ښیي او چیرې باید ولیکل شي.

– ښاغلی ښوونکی! دې زده کوونکو ته ووایې د ۴ عدد زباني ضرب تکرار کړئ او ووایاست. څو واري ۴ مساوي له ۲۸ کیږي زده کوونکي باید دې نتیجې ته ورسیږي چې په تش ځای کې باید ۷ ولیکل شي. ۴×۷ =۲۸ کیږي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست د خپل کتاب

مشق او تمرین

۱. د ویش د حاصل یا (خارج قسمت) د پیدا کولو لـه پاره د حـل شوي مثال په ډول د تفریق عملیه سرته ورسوئ او ځواب یې ولیکئ.

مثال

۱۵÷۵=

۱۵-۵=۱۰ ← ۱۰-۵=۵ ← ۵-۵=۰

۱۵÷۵=۳

۲۴÷۸=?

۲۴-۸=۱۶ ← ۱۶-۸=۸ ← ۸-۸=۰

۲۴÷۸=۳

۲. د عددونو د خط په مرسته دحل شوي مثال په ډول د تفریق عملیه سرته ورسوئ.

مثال

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱۶ ۱۷ ۱۸ ۱۹ ۲۰

۱۵÷۵= ۳

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱۶ ۱۷ ۱۸ ۱۹ ۲۰

۲۰÷۴= ۵

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱۶ ۱۷ ۱۸ ۱۹ ۲۰

۱۸÷۶= ۳

کورنی دنده

د عددونود خط په مخ باندې د ?-۴÷۱٦ افادی د تقسیم حاصل په لاس راوړئ.

۰ ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ ۱۶ ۱۷ ۱۸ ۱۹ ۲۰

۱٦ ÷ ۴ = ۴

۱۱٦

(۱۱٦) مخ ته پام وکړئ او خلاص یې کړئ (۱) ګڼه پوښتنه د مواد په واسطه په عملي توګه کار وکړی او تش ځای ډک کړئ که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرین:**

ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱٦) مخ ته را واړوي د دویمې شمیرې پوښتنې دې د کتاب له هدایت سره سم کار وکړي که چیرې زده کوونکي له کوم ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې ورته لارښوونه وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډه شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دئ او که نه؟ له زده کوونکو څخه لاندې

پوښتنې وکړئ د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک د تقسیم مفهوم د تفریق د عملیې په واسطه ښيې؟

– څوک د تقسیم په یوه عملیه کې، مقسوم، مقسوم علیه او خارج قسمت ښيې؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د تقسیم لاندې عملیې سرته ورسوي.

۳۵÷۵=? ، ۴۹÷۷=? ، ۵۶÷۸=? ، ۶۳÷۹=?

**ذهنیت:**

د تقسیم د عملیې او د تقسیم د مفهوم په پوهیدو او پیژندلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د تقسیم د عملیې پوهیدل او د تقسیم د طریقې پیژندل د زده کوونکو په ورځنۍ ژوند کې ډیر ارزښت لري. په پلورلو او رانیولو کې د یوه درجن یا مجموعي قیمتونو له مخې د یوه شي قیمت په ډیره آسانۍ سره پیدا کولی شي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۱۱۶) مخ پوښتنې د کتاب له هدایت سره سم حل او سرته ورسوي.

# سرلیک: د دوه رقمي عددونو ويشل په يوه رقمي عدد باندې

**دوه څلويښتم لوست، (۱۱۷ ، ۱۱۸) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدفونه:**

– زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه په يوه رقمي عدد باندې وويشي.

– په يوه رقمي عدد باندې د دوه رقمي عدد د تقسيم په طريقه پوه شي.

**اصطلاح ګانې:** تقسيم، مقسوم، مقسوم عليه، د ويش حاصل (خارج قسمت)، پاتي.

**د لوست مرستندوی مواد:** د بانک نوټونو کارتونه، لوبيا او نور محيطي مواد.

**دوه څلويښتم لوست: د دوه رقمي عددونو تقسيم په يوه رقمي عددونو باندې**

هدف : زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه په يوه عدد باندې تقسيم کړي.
د دوه رقمي عددونود ويش طريقه په يوه رقمي عدد باندې پوه شي




لومړی مثال: غواړو د ۹۸ عدد په ۷ باندې وويشو ليدل کيږي چې د مقسوم د کيڼې خوا رقم يعني ۹ د مقسوم عليه يعنې د ۷ څخه لوی دی او په هغه باندې ويشل کيږي. چې خارج قسمت يې (۱) دی، هغه په ۷ کې ضرب کوو او د ضرب حاصل يې تر ۹ لاندې ليکو او تفريق کوو يې چې د تفريق حاصل يې ۲ کيږي.
بيا ۸ را کښته کوواو د تفريق د حاصل ښي خواته يې ليکو چې د ۲۸ عدد لاس ته راځي چې د ۲۸ عدد لاس ته راغي اوس د ۲۸ عدد په ۷ باندې ويشو د زباني ضرب څخه په کار اخيستنې سره پوهيږو چې.

$4 \times 7 = 28$

کيږي د ۴ عددپه خارج قسمت کې ليکو او په ۷ کې ضرب کوو دا د ضرب حاصل د ۲۸ لاندې ليکو او تفريق کوو. په نتيجه کې ليدل کيږي چې د تفريق حاصل يې صفر(پاتې) او خارج قسمت يې د ۱۴ عدد په لاس راځي.




**۱– فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو وويشئ د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د ګروپ د غړو له خوا وکتل شي اشتباه ګانې دې پرتخته وليکل شي او د اشتباه ګانو صحيح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پيدا کړئ. ښاغلی ښوونکی پاملرنه وکړئ که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړئ.

– بيا زده کوونکوته ووایاست! هر ګروپ دې په خپل ميز باندې ۴۲ دانې لوبيا کښيږدي او هر ګروپ دې هغه په شپږو، شپږو زده کوونکو په مساوي توګه وويشي دا عمليه دې تر هغه وخت پورې سرته ورسوي چې د لوبيا دانې خلاصې شي. بيا دې وګوري چې هر زده کوونکي ته څو دانې لوبيا رسيدلې دي. نتيجه دې وليکي.

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووايي د تفريق د عمليې په کارولو سره له ۴۲ لوبيا څخه ٦، ٦ دانې لوبيا په ترتيب سره کم کړي ترڅو چې ۴۲ دانې لوبيا خلاصې شي لکه په لاندې ډول:

لومړی واري ⟵ ۴۲ – ٦ = ۳٦

دويم واري ⟵ ۳٦ – ٦ = ۳۰

دريم واري ⟵ ۳۰ – ٦ = ۲۴

څلورم واري ⟵ ۲۴– ٦ = ۱۸

پنځم واري ⟵ ۱۸ – ٦ = ۱۲

شپږم واري ⟵ ۱۲ – ٦ = ٦

اووم واري ⟵ ٦ – ٦ = ۰

– ښاغلی ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې څو واري شپږ له ۴۲ څخه تفريق شوي دئ؟

ښايي چې زده کوونکي ووايي ۷ واري ٦ تفريق شوي دئ.

بيا دې پوښتنه وکړي که چيرې د ٦ زباني ضرب تکرار کړئ څو واري ٦ مساوي ۴۲ کيږي. ښايي چې زده کوونکي ووايي $6 \times 7 = 42$ کيږي. ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست له دې وروسته د زباني ضرب په کارولو سره د قدمونو او وارونو شمير په لاس راوړئ.

او ښوونکی دې د ۴۲ |٦ عمليه پرتخته وليکي او له زده کوونکو څخه دې پوښتنه وکړي:

– پورتنۍ عمليه د کومې عمليې په نامه ياديږي؟

– د ۴۲ عدد د څه شي په نامه ياديږي؟

– د ٦ عدد د څه شئ په نامه ياديږي؟ څه شئ نامعلوم دي؟ څه شی غواړو چې معلوم يې کړو؟

– ښاغلی ښوونکی! کله چې زده کوونکو څخه دې پورته پوښتنو صحیح ځوابونه واورېدل. که چیرې زده کوونکي وکولی شي د قناعت وړ ځوابونه د مخکنۍ معلومات له مخې ووایې ښه به وي.

له هغه پرته زده کوونکو ته داسې معلومات ورکړئ د ۴۲ عدد د مقسوم په نامه، د ٦ عدد د مقسوم علیه په نامه او دا ( ┤ ) د تقسیم د نښې په نامه یادوي. هغه عدد چې غواړو پیدا یې کړو د (۷) عدد دی چې د تقسیم د حاصل (خارج قسمت) په نامه یادیږي. چې د تقسیم عملیه په لاندې توګه سرته رسول کیږي:

مقسوم ⟵ ۴۲ | ٦ ⟵ مقسوم علیه

− ۴۲ | ۷ ⟵ د ویش حاصل (خارج قسمت)

پاتې ⟵ ۰۰

– ښاغلی ښوونکی د دې له پاره چې زده کوونکي خارج قسمت په آسانۍ سره پیدا کړي زده کوونکي باید د ٦ د عدد زباني ضرب تر هغه وخت پورې تکرار کړي چې د ضرب حاصل یې له مقسوم ۴۲ څخه زیات نشي. که چیرې دې پوښتنې ته غور وکړئ او د ٦ زباني ضرب تکرار کړئ لیدل کیږي چې ۴۲=٦×۷ کیږي نو ویلای شو چې خارج قسمت د ۷ عدد دئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته هدایت ورکړئ چې د کتاب (۱۱۷) مخ په غور سره مطالعه کړي بیا یو زده کوونکی فرضاً محمود د ټولګي مخې ته را وغواړئ چې یو عدد لکه ۹۸ د ۷ په عدد باندې وویشی. بیا هم که چیرې زده کوونکي کومې ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲– مشق او تمرین:** ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۸) مخ ته را وګرزوئ ورته وواياست چې (۲) او (۳) مثالونه په خپل ګروپونو کې په غور سره مطالعه کړئ. خبرې او اترې وربانديې وکړئ. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو زده کوونکی یو، یو مثال په تخته باندې تشریح کړي. د ستونزو په صورت کې دې له هغوی سره مرسته وشي.

**۳– ارزونه:** د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډه شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغوی سره مرسته او لارښوونه ورته وکړي.

**پوښته:**

– څوک د ۳٦ عدد د ۵ په عدد باندې ویشي؟

– څوک د تقسیم په یوه عملیه کې مقسوم، مقسوم علیه،

دوهم مثال: د ۴۸ عدد په ٦ باندې ویشو. که چیرې د تقسیم د حاصل د پیدا کولو له پاره ژبني ضرب ته پاملرنه وکړو لیدل کیږي چې. ۴۸ = ٦ × ۸

نو لیکلی شو چې: ۸ = ٦ ÷ ۴۸

او یا

۵×۶=۳۰
۶×۶=۳۶
۷×۶=۴۲
۸×۶=۴۸

۴۸ | ۶
− ۴۸ | ۸
۰

دریم مثال: د لاندې پوښتنې د حل طریقی ته پاملرنه وکړئ.

۲×۶=۱۲
۳×۶=۱۸
۴×۶=۲۴
۵×۶=۳۰

۲۵ | ۶
− ۲۴ | ۴
۱
پاتې شوی

۵×۷=۳۵
۶×۷=۴۲
۷×۷=۴۹
۸×۷=۵۶
۹×۷=۶۳

۶۱ | ۷
− ۵۶ | ۸
۵
پاتې شوی

کورنۍ دنده

لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې حل کړئ.

۷۲ | ۹
− ۷۲ | ۸
۰۰

٦۳ | ۸
− ۵٦ | ۷
۷

۹۴ | ٦
− ٦ | ۱۵
۳۴
− ۳۰
۴




د ویش حاصل او پاتې ښیې؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د تقسیم لاندې عملیې سرته ورسوي او پاتې وښیې:

۳۵÷۵=? ، ٦۳÷۷=? ، ۷۵÷۸=? ، ۸۴÷۹=?

**ذهنیت:**

د تقسیم کولو د دې عملیې په پوهېدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

د دوه رقمي د عددونو ویشل په یوه رقمي عدد باندې د زده کوونکو د ورځنۍ ژوند له پاره ډېر ارزښت لري. د شیانو او جنسونو په پلورلو او رانیولو کې کار ورڅخه اخستلای شي یعني که د څو شیانو قیمت ورته معلوم وي د تقسیم د عملیې په کارولو سره د یوه شي قیمت پیدا کولای شي په دې صورت کې د ځان او نورو ستونزې حل کوي.

**۴– کورنۍ دنده:** زده کوونکی دې د کتاب (۱۱۸) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

# سرلیک: د دوه رقمي عددونو ویشل په یوه رقمي عدد باندې

**دوه څلویښتم لوست، (۱۱۹ ، ۱۲۰) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدفونه:**

– زده کوونکي وکړای شي دوه رقمي عددونه په یوه رقمي عدد باندې وویشي.

– په یوه رقمي عدد باندې د دوه رقمي عدد د ویش په طریقه پوه شي.

**اصطلاح ګانې:** د تقسیم نښه ( |‾‾ )، مقسوم، مقسوم علیه، د تقسیم حاصل (خارج قسمت)، پاتې.

**د لوست مرستندوی مواد:** لرګوټي، د لسیو او سلیو، بنډلونه او نور محیطي مواد.

۱- د لاندې عملیو خارج قسمت پیداکړئ.

۴۹ ÷ ۷ = ۷، پاتې ۰۰ — ۳۶ ÷ ۸ = ۴، پاتې ۰۴ — ۲۸ ÷ ۷ = ۴، پاتې ۰۰ — ۲۲ ÷ ۷ = ۳، پاتې ۱

۴۶ ÷ ۶ = ۷، پاتې ۴ — ۳۲ ÷ ۸ = ۴، پاتې ۰۰ — ۳۴ ÷ ۴ = ۸، پاتې ۲ — ۶۷ ÷ ۸ = ۸، پاتې ۰۳

۲- د تقسیم عملیې، د زباني ضرب په کار ولو سره هغه لوی عدد پیدا کړئ او په تشو ځایونوکې ولیکئ. په داسې حال کې چې د ضرب حاصل یې له مقسوم علیه سره مساوي او یا کوچنی له مقسوم څخه وي چې په دې صورت کې باید پاتې شوی له مقسوم علیه څخه کوچنی وي مثال:

۶۰ ÷ ۹ = ۶، ۶۰ − ۵۴ = ۶ (۶×۹<۶۰) پاتې

دپورته مثال په توګه لاندې پوښتنې حل کړئ.

۷۵ ÷ ۸ (۹×۸<۷۵) — ۴۱ ÷ ۷ (۵×۷<۴۱) — ۲۸ ÷ ۳ (۹×۳<۲۸)

۱۱۹

**۱- فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې ګروپونو وویشل شي د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې ولیدل شي. صحیح ځوابونه د ګروپ د زده کوونکو په واسطه پیدا کړئ. ښاغلی ښوونکی د کار څخه لیدنه کوي که چیرې زده کوونکي کومه ستونزه ولري مرسته دې ورسره وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! د هر ګروپ زده کوونکو ته په مختلف شمیر سره لرګوټي ورکړه لومړی ګروپ دې لرګوټي په ۴ تنو، دویم ګروپ دې په ۵ تنو او دریم ګروپ دې په ٦ تنو باندې وویشي. بیا دې په هغو کې مقسوم، مقسوم علیه، د تقسیم حاصل او پاتې وښیې. وروسته د زده کوونکو پام د کتاب (۱۱۹) مخ ته را وګرزوئ ورته وواياست لومړی او دویمې پوښتنې د کتاب له هدایت سره سم په خپل ګروپونو کې حل کړئ ښاغلی ښوونکی دې د کار د جریان مراقبت او څارنه کوي. که چیرې زده کوونکي کومه ستونزه ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

**۲- مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۰) مخ ته را واړوی د دې مخ (۱)، (۲) او (۳)، شمیره پوښتنې دې لومړی ګروپ، (۴)، او (۵) شمیره پوښتنې دې دویم ګروپ، ٦ او ۷ شمیره پوښتنې دې دریم ګروپ په ډیر غور سره مطالعه کړي. د پوښتنو په مفهوم دې ځانونه پوه کړي. بیا دې د پوښتنو په حل کولو پیل وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! که چیرې زده کوونکي د عبارتي پوښتنو په تحلیل او مفهوم کې ستونزې ولري. د موادو یا کوچنۍ عددونو په واسطه دې کار وکړي. برسیره پر هغه هم که چیرې ستونزې ولري مرسته ورسره وکړئ.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوي لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په

صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وايي د ۵۸ عدد د ۷ په عدد باندې ویشل کیږي؟

– څوک د ٦۴ عدد د ۸ په عدد باندې ویشي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي د ژبنی ضرب په کارولو سره لاندې تش ځایونه ډک کړي:

۷=□÷٦٣ ، ٦=□÷١٨ ، □=٩÷٨١ ، □=٧÷٥٦

**ذهنیت:**

د دوه رقمي عددونو ویش په یوه رقمي عدد سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

د دې ډول عددونو ویشل پر یو بل باندې د زده کوونکو په ژوند کې زیات ارزښت لري هغوی کولی شي په نورو تولګیو کې کار ورڅخه واخلي. او هم د ویش له عملیې څخه د شیانو په پلورلو او رانیولو کې کار اخستلای شي په دې صورت کې د ځان او نورو ستونزې حل کولی شي.

**۴– کورنی دنده:**

ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته وواياست چې لاندې پوښتنې حل او په هغو کې مقسوم، مقسوم علیه، د تقسیم حاصل او پاتې وښیاست.

۴۲ | ٦ ۹۴ | ۴ ۵۵ | ۵

پوښتنې:

۱- عبدالله غواړي چې ۸۸ داني نهالونه په ۹ پټیو کې په مساوي توګه کښینوي، معلوم یې کړئ چې څو نهالونه زیات پاتې کیږي. ځواب: ۷ نهاله زيات پاتی کيږي.

۸۸ | ۹
−۸۱ | ۹
۰۷

۲- که چیرې په یوه موټر کې ۹ تنه ځاي شي نو د ۷۲ تنو له پاره څو موټرو ته اړتیا ده؟
ځواب: ۸ موټرو ته اړتيا ده.

۷۲ | ۹
−۷۲ | ۸
۰۰

۳- که چیرې په یوه غوري کې ۲ تنه ډوډي و خوري معلوم یې کړئ چې د ٦۸ تنو له پاره څو غوریانو ته اړتیا ده؟
ځواب: ۳۴ غوريانو ته اړيتا ده.

٦۸ | ۲
−٦ | ۳۴
۸
−۸
۰

۴- که چیرې یو زده کوونکی ٦ توکو کتابچو ته اړتیا ولري ٥٦ توکه کتابچې څو زده کوونکو ته رسیږي او څو کتابچې پاتې کیږي. ځواب: هر زده کوونکی ته ۹ توکه او ۲ توکه پاتې کيږي.

٥٦ | ٦
−۵۴ | ۹
۰۲

۵- که چیرې یوې کورنۍ په یوه اونۍ کې ۸٦ کیلو واټ برق مصرف کړي وي، معلوم یې کړئ چې په یوه ورځ یې څو کیلو واټ برق مصرف کړي دي.

۸۴ | ۷
−۷ | ۱۲
۱۴
−۱۴
۰۰

٦- که چیرې یوتن په یوه ورځ ۸ ګرامه بوره مصرف کړي ۹٦ ګرامه بوره د هغه د څو ورځو له پاره بس کوي؟

۹٦ | ۸
−۸ | ۱۲
۱٦
−۱٦
۰۰

۷- ٦۳ تنه په ۹ موټرو کې ځي، که چیرې په هر موټرکې د سړیو شمیر سره مساوي وي معلوم یې کړئ چې په هر موټرکې څوتنه ناست دي؟

٦۳ | ۹
−٦۳ | ۷
۰۰

کورنۍ دنده

کورنۍ دنده: لاندې پوښتنې حل کړي

۴۲ | ۲ ۹۴ | ۴ ۵۵ | ۵

۱۲۰

# سرليک: د دري رقمي عددونو تقسيم په يوه رقمي عدد باندې

**دري څلويښتم لوست، (۱۲۱ ، ۱۲۲) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه ي)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي دري رقمي عددونه په يوه رقمي عدد باندې وويشي.

**اصطلاح ګانې:** تقسيم، مقسوم، مقسوم عليه، د تقسيم حاصل (خارج قسمت)، پاتې.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لرګوټو د لسيو او سليو بنډلونه، د بانک نوټونو کارتونه.

**۱ – فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکي په ۳ ګروپونو وويشي او بيا دې د زده کوونکو کورنۍ دنده وګوري. اشتباه ګانې يې ورته په ګوته کړئ. وروسته اشتباه ګانې د هغه زده کوونکي په واسطه صحيح کړئ چې خپله کورنۍ دنده يې په صحيح او سمه توګه سرته رسولې وي. بيا هم که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې په تخته باندې تشريح کړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست ۸۴٦ افغانۍ په خپل ګروپونو کې د بانک نوټونو د کارتونو د يوې افغانيزې، لسيو او سليو په واسطه ترتيب او وښياست. بيا هغه د خپل ګروپ د غړو ۴ تنو ته وويشئ. وګورئ چې هر تن ته څو افغانۍ رسيږي او څو يې پاتې دي ليدل کيږي چې ۴ واړو ته په مساوي توګه نه رسيږي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست اد فعاليت چې په عملي توګه سرته ورسيد اوس ۸۴٦ افغانۍ په ۴ تنو باندې د تقسيم د عمليې په واسطه سرته ورسوي وښياست چې د تقسيم حاصل (خارج قسمت) او پاتې څومره دي.

– ښاغلی ښوونکی! که چيرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کيږي داسې ورته لارښوونه وکړي.

**څلور څلويشتم لوست: د دري رقمي عددونو تقسيم په يوه رقمي عدد باندې**

هدف: زده کوونکي وکړای شي دري رقمي عددونه په يوه رقمي عدد باندې تقسيم کړي.

لومړی مثال: د ٦۹۳ عدد د ۳ په عدد باندې ويشو.
حل: لومړی د مقسوم د سليزو مرتبه يعنې ٦ د ۳ په عدد باندې ويشو چې خارج قسمت يې ۲ دی. په خارج قسمت کې ليکو بيا ۲ په ۳ کې ضرب کوو او د ضرب حاصل د ٦ لاندې ليکو او تفريق کوو يې چې د تفريق حاصل يې صفر کيږي.
په همدې ډول د لسيزو او يويزو مرتبو رقمونه را کښته کوو او د ويش عمليه سرته رسوو. په پای کې ليدل کيږي چې پاتې يې صفر دی.



دوهم مثال: د ۱۳٦ عدد ، د ۵ په عدد باندې ويشو. ليدل کيږي چې دسليزو رقم له مقسوم عليه څخه کوچنی دی نود لسيزو رقم دسليزو له رقم سره چې ۱۳ کيږي. په ۵ باندې ويشو. په دې صورت کې د ويش حاصل يې ۲ دي. ۲ په ۵ کې ضرب کوو. د ضرب حاصل له ۱۳ څخه تفريق کوو چې تفريق حاصل يې ۳ کيږي اوس د مقسوم ديويز رقم يعنې ٦ را کښته کوو د۳٦عدد حاصل کيږي. هغه په ۵ باندې وېشو چې د وېش، حاصل يې ۷ کيږي. د ۷ عدد په ۵ کې ضرب کوو او د ضرب حاصل يې له ۳٦ څخه تفريق کوو په پای کې ليدل کيږي چې د (۱) عدد پاتې شوی او له مقسوم عليه څخه کوچنی دی.






```
مقسوم ←  ۸۴٦ | ۴  ← (مقسوم عليه)
        - ۸  | ۲۱۱ ← د تقسيم حاصل (خارج قسمت)
          ۴
        - ۴
           ٦
        - ۴
پاتې ←     ۲
```

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې د ويش حاصل له هغو افغانيو سره پرتله کړي چې مخ کې ويشلي وي. او پاتې (باقيمانده) دې هم يو له بله سره پرتله کړي نتيجه دې د ګروپ يوه، يوه تن له خوا وويل شي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست. چې د تقسيم عمليه تل د مقسوم د لوېي مرتبې يعنې د کيڼ خوا له رقم څخه پيل کړئ.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایاست چې (۱۹۸) افغانۍ خپل د ګروپ په (۳) تنو باندې وويشئ. ښايي چې زده کوونکي به، په تشويش کې شي چې څه ډول سل افغانۍ په ۳ تنو وويشو نو زده کوونکو ته ووایاست لکه د جمعې او تفريق په عمليو کې چې

سليز په لسيزو بدليدل. دلته هم سليز په لسيزو بدل كړئ يعنې يو سلې چې (١٠) لسيه كيږي بدل كړي ١٨ لسيه په دريو تنو وويشئ او د ويش عمليې ته دوام وركړئ. او په پاى كې له هر يوه نن ځخه پوښتنه وكړئ تاسو هر يوه ته څو، څو افغانۍ رسيدلي دي.
ښايي چې هر يو يې ځواب ووايي ماته ٦٣ افغانۍ رسيدلي دي.

– بيا دې ښاغلى ښوونكى له زده كوونكو ځخه پوښتنه وكړي څوك ويلاى شي چې (٦٣) افغانۍ د څه شي په نامه ياديږي. هغو بايد ووايي د تقسيم د حاصل (خارج قسمت) په نامه ياديږي.

– ښاغلى ښوونكى! زده كوونكي بايد په دې پوه شي چې (١٨٩) افغانۍ چې په ٣ تنو زده كوونكو باندې وويشل شوې ١٨٩ ته مقسوم، ٣ ته مقسوم عليه او ٦٣ چې هر يوه زده كوونكي ته رسيدلي دي د تقسيم حاصل وايي.

– ښاغلى ښوونكى زده كوونكو ته وواياست چې د ١٨٩ درې رقمي عدد د ٣ په يوه رقمي عدد باندې وويشئ او د ويش حاصل په لاس راوړئ ښايي چې زده كوونكي د دې عمليې په سرته رسولو كې ستونزې ولري داسې يې ورته حل كړئ:

مقسوم ←١٨٩ | ٣ ← مقسوم عليه
– ١٨ | ٦٣ ← د تقسيم حاصل (خارج قسمت)
٠٠٩
– ٩
پاتې ←٠٠٠

**٢– مشق او تمرين:** ښاغلى ښوونكى! د زده كوونكو پام د كتاب (١٢٢) مخ ته را واړوئ چې د دې مخ (١) او (٢) مثالونه په ډير غور سره وګوري. ښاغلى ښوونكى دې له ګروپونو ځخه ليدنه كوي كه چيرې زده كوونكي پوښتنې ولري مرسته او لارښوونه دې وكړي. بيا دې زده كوونكو ته ووايي خپل كتابونه وتړئ او په خپل ګروپونو كې د ١٣٦ عدد د ٦ په عدد باندې وويشئ. يعنې د تقسيم عمليه سرته ورسوئ. دا چې زده كوونكى په خپل كار باندې متيقن شي ورته وواياست اوس دا سر ته رسولې عمليه مو د كتاب له (١٢٢) مخ له حل كړې پوښتنې سره پرتله كړئ او نتيجه يې هم ورسره پرتله كړئ. وواياست توپير لري او كه نه؟

**٣– ارزونه:** د دې له پاره چې ښاغلى ښوونكى ډاډه شي چې زده كوونكو نوى لوست زده كړى دى او كه نه؟ له زده كوونكو ځخه دې لاندې پوښتنې وكړي. د ستونزو په صورت كې له هغو سره مرسته او لارښوونه وكړئ.

د لاندې پوښتنو حل په نظر كې ونيسئ:

٥٧٤ | ٨
٥٦ | ٧١
١٤
– ٨
٦ پاتې




٦٣٦ | ٦
– ٦ | ١٠٦
٠٣٦
– ٣٦
٠ پاتې شوی

ځرنګه چې دلسيزو د مرتبې رقم يعنې ٣ له مقسوم عليه ځخه كوچنى دى د خارج قسمت په اړوند مرتبه كې صفر ليكو. او بيا دمقسوم بل عدد را كښته كوو.




هر يو زده كوونكى دې د ويش يوه پوښتنه په خپله كتابچه كې وليكي او حل دې كړي.
ځواب: د زده كوونكو كار دى.

١٢٢

**پوهه:**
– څوك يو درې رقمي عدد ليكي او په ٧ باندې ويشي؟
– څوك وايي مقسوم زيات دى او كه د تقسيم حاصل.

**مهارت:**
زده كوونكي وكړاى شي د تقسيم لاندې عمليې سر ته ورسوي:
٨٦٤ | ٨ ، ٥٦٨ | ٧ ، ٤٨٧ | ٦ ، ١٥٦ | ٤

**ذهنيت:**
د دې ډول د تقسيم د عمليې په سرته رسولو سره د زده كوونكو ذهن بدلون مومي په ځان باور پيدا كوي په ډاډ سره د تقسيم پوښتنې حل كوي.

**ارزښت:**
د دې عمليې په پوهيدو سره زده كوونكي كولى شي د ژوند په ورځنې معاملو كې كار ورځخه واخلي. په پلورلو او رانيولو كې خپلې ستونزې حل كړي د اړتيا په وخت كې له نورو سره مرسته وكړي.

**٤– كورنۍ دنده:** زده كوونكي دې د كتاب د (١٢٢) مخ كورنۍ دنده له هدايت سره سم حل او له ځانو سره راوړي.

# سرلیک: د درې رقمي عددونو تقسیم په یوه رقمي باندې

**درې څلوېښتم لوست، (۱۲۳) مخ**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ساعته (۴۵ دقیقې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي درې رقمي عددونه په یوه رقمي عددونو باندې وویشي.

**اصطلاح ګاني:** درې رقمي، یو رقمي، تقسیم، مقسوم، مقسوم علیه، خارج قسمت، پاتې.

**د لوست مرستندوی مواد:** د بانک نوټونو کارتونه.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په ۳ ګروپونو وویشئ. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې په اړوند ګروپ کې وکتل شي. اشتباه ګانې په تخته باندې ولیکئ. بیا دې د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا کړئ که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورته وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست د بانک نوټونو هغه کارتونه چې درسره شته دې د ۶۰۸ افغانۍ د هغو کارتونو د یوې افغانیزو او سل افغانیزو په واسطه وشمیرئ او جلاېې کړئ. بیا هغه د خپل ګروپ په دوو تنو باندې وویشئ. او ورته وګورئ چې هر یوه ته څو سلګون، څو لس ګون او څو یوه افغانیزه رسیږي؟ د هر یوه پیسي په خپل ګروپ کې ولیکئ. باید چې د دې دواړه هر یوه زده کوونکي په لاس کې ۳۰۴ افغانۍ وي.

– ښاغلی ښوونکی بیا زده کوونکو ته ووایاست چې د ۶۰۸ عدد د ۲ په عدد باندې په ریاضیکی توګه وویشئ. د تقسیم حاصل (خارج قسمت) پیدا کړئ.

– ښاغلی ښوونکی دې د ګروپي کار څارنه وکړي که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري هغو ته دې د حل لارښوونه داسې وکړي:

```
٦٠٨ | ٢
−٦  | ٣
٠٠
```

**پوښتنې:**

۱- په لاندې پوښتنو کې د تقسیم عملیې سر ته ورسوئ؟

```
١٧٠ | ٩        ٦٦ | ٧        ٤١ | ٦        ٨٦٧ | ٥
−٩  | ١٨      −٦٣ | ٩       −٣٦ | ٦       −٥  | ١٧٣
٨٠            ٠٣            ٠٥            ٣٦
−٧٢                                       −٣٥
٠٨                                        ١٧
                                          −١٥
                                          ٠٢

٢٨٥ | ٣       ١٦٨ | ٨       ١٦٨ | ١       ٤٢٠ | ١
−٢٧ | ٩٥      −١٦ | ٢١      −٣  | ٣٧٥     −٤  | ٤٢٠
١٥            ٠٠٨           ٠٧            ٠٢
−١٥           −  ٨          −  ٧          −  ٢
٠٠            ٠             ٠٥            ٠
                            −  ٥
                            ٠

٤٩٨ | ٩       ١٠٠ | ٧       ٧٠٩ | ٧       ٩٦٠ | ٦
−٤٨ | ٦٢      −٧  | ١٤      −٧  | ١٠١     −٦  | ١٦٠
١٨            ٣٠            ٠٠٩           ٠٣٦
−١٦           −٢٨           −  ٧          −٣٦
٠٢            ٠٢            ٢             ٠٠
```

۲- یوه بزګر ۹۸۰ کیلو ګرامه غنم حاصل واخیست که چیرې نوموړی بزګر د ورځې ۷ کیلو ګرامه غنم مصرف ولري معلوم کړئ چې نوموړي غنم د بزګر د څو ورځو له پاره بس کوي.

```
٩٨٠ | ٧
−٧  | ١٤٠
٢٨
−٢٨
٠٠
```

۳- یوه بڼوال ۸۰۱ کیلو ګرامه زردآلو حاصل واخیست. که چیرې وغواړي هغه په ۹ کیلو ګرامه صندوقونو کې وویشي. نو څو صندوقونو ته اړتیا پیدا کوئ د اړتیا وړ صندوقونو شمېر معلوم کړئ؟

```
٨٠١ | ٩
−٧٢ | ٨٩
٠٨١
−  ٨١
٠٠
```

۱۲۳

زده کوونکي باید پاملرنه وکړي چې د لسیزو په مرتبه کې صفر دی لسي وجود نه لری چې د لسیزو په مرتبه کې د ویش عملیه سر ته ورسوو. نو د ویش په حاصل کې د لسیزو په ځای کې هم د لسیزو صفر لیکو بیا د یویزو یعنی د ۸ عدد را کښته کوو او د ویش عملیه سر ته رسوو:

```
مقسوم ←٦٠٨ | ٢ ← مقسوم علیه
−  ٦       | ٣٠٤ ← د تقسیم حاصل (خارج قسمت)
٠٠٨
−  ٨
پاتې ← ٠٠٠
```

– ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایې کله چې د مقسوم یوه مرتبه د مقسوم علیه څخه کوچنۍ وي. نو د ویش د حاصل په ځای کې صفر لیکو او د مقسوم ورپسې یا بل عدد را کښته کوو او د تقسیم عملیې ته ادامه ورکوو ترڅو پای ته ورسیږي.

– ښاغلی ښوونکی څرنګه چې د تقسیم پورتنۍ عملیه مو

زده کوونکو ته ور وښودل زده کوونکو ته ووایاست هغه خارج قسمت چې لاس ته مو راوړی دی له خپله مخکنۍ لیکنې سره چې د موادو په واسطه سرته رسولي ده پرتله یې کړی او نتیجه یې ووایاست.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست. د کتاب (۱۲۳) مخ خلاص کړئ (۱) شمیره پوښتنه په خپل ګروپونو کې حل کړئ ښاغلی ښوونکی دې د ګروپي کار مراقبت او څارنه کوي که چیري زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ شي مرسته او لارښوونه ورته وکړئ.

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۳) مخ ته را وګرزوئ (۲) او (۳) ګڼې پوښتنې دې په خپل ګروپونو کې ولولي. د تقسیم د عملیې په کارولو سره چې مخکې یې زده کړي ده حل دې کړي مقسوم، مقسوم علیه، خارج قسمت او پاتې دې وښیې.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډه شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښته:**

– څوک د ۶۴۵ عدد د ۵ په عدد باندې ویشی؟

– څوک د ۱۸۴ عدد د ۴ په عدد باندې ویشی؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي د زباني ضرب په کارولو سره لاندې درې رقمي عددونه په یوه رقمي عدد باندې وویشي:

۶۸۵ | ۶ ، ۲۷۹ | ۳ ، ۷۶۴ | ۵ ، ۸۹۷ | ۶ ، ۶۰۰ | ۸

**ذهنیت:**

د دې ډول د تقسیم په پوهیدو او زده کړي سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومی او خوښې کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د تقسیم د عملیې په کار اخستنې سره کولی شي د ورځنۍ ژوند په پلورلو او رانیولو کې ګټه پورته کړي. د ویش حاصل او پاتې په لاس راوړي او په مساوي توګه د جنسونو او شیانو په ویشلو کې عادلانه قضاوت وکړی.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې لاندې پوښتنې حل کړي.

۱۰۷ | ۳ ، ۵۰۰ | ۵

# سرلیک: د ضرب او تقسیم د عملیو آزموینه د یو بل په واسطه

**څلور څلویښتم لوست (۱۲۴)**

**لومړۍ برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د ضرب او ویش عملیې د یو بل په واسطه و ازموي.

**اصطلاح ګانې:** آزمول، عملیه، ضرب، ویش.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبیا دانې، لرګوټې او نور محیطي مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشئ. او ورته وواياست د هر زده کوونکي د کورنی دندې پوښتنې دې په اړوند ګروپ کې ولیدل شي. هغو زده کوونکو چې د پوښتنو په حل کې اشتباه کړې ده اشتباه ګانې یې په تخته باندې ولیکئ. بیا د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا کړی. که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري ښاغلی ښونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! د لومړی ګروپ زده کوونکو ته وواياست چې ۲۴ دانې لوبیا په ۴ زده کوونکو باندې وویشي، او د دویم ګروپ زده کوونکو ته وواياست چې ۲۴ دانې لوبیا په ٦ زده کوونکو باندې وویشي. او د دریم ګروپ زده کوونکو ته وواياست چې ٦ دانې لوبیا ۴ برابره یعنی ۴ واري ٦، ٦ زیات کړئ وواياست چې څو دانې لوبیا کیږي.

– بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. او له دریم ګروپ څخه دې یو تن د خپل ګروپ کار د ضرب د عملیې په توګه ولیکي او همدارنګه له لومړي او دویم ګروپونو څخه په ترتیب سره د خپل د ګروپ د تقسیم اړوند عملیې په

**پنځه څلویښتم لوست: د ضرب او تقسیم د عملیو ازموینه د یو بل په واسطه**

هدف: زده کوونکی وکړای شي د ضرب او ویش عملیې د یو بل په واسطه وآزموي. پاملرنه وکړئ: تا سو وینئ چې د ضرب هر یوه تساوی له پاره ، دویش یا تقسیم دوه تساوی لیکلای شو:

۱۸÷۶=۳ ۱۸÷۳=۶ ۶×۳=۱۸

د ضرب او ویش د آزمولو د عملیو په کار ولو سره لیکلی شو چې:

| | | |
|---|---|---|
| ۵×٦-۳۰ | ۷×۴-۲۸ | ۱۱×٦+۲-? |
| ۳۰÷٦-۵ | ۲۸÷۴-۷ | ٦٦+۲-٦۸ |
| ۳۰÷۵-٦ | ۲۸÷۷-۴ | |

٦۸ | ٦ — ۱۱؛ - ٦، ۸، - ٦، ۲

د پورتنی پوښتنو له حل څخه نتیجه اخستلای شو که چېرې د ضرب حاصل په یوه جز دضرب باندې و ویشو بل جزء د ضرب لاس ته راځی او همدارنګه که چېرې مقسوم علیه په خارج قسمت کې ضرب او له پاتې شوي عدد سره جمع کړو مقسوم لاس ته راځي.




د ٦ او ۸ د ضرب حاصل په لاس را وړئ او د هغه له پاره دویش یا تقسیم دوه عملیې ولیکئ.

ځواب: ٦ × ۸ = ۴۸

۴۸ | ۸ — ٦؛ - ۴۸، ۰۰ ۴۸ | ٦ — ۸؛ - ۴۸، ۰۰




تخته باندې ولیکي.

– ښاغلی ښوونکی! د ټولو زده کوونکو پام د ټولګي تختې ته را واړوئ. او له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ. دا عملیې چې تاسو په تخته باندې سرته ورسولي د هغو تر منځ څه اړیکی (رابطه) وجود لري. سوچ ورته وکړئ او عددونو ته یې په غور سره وګورئ هر څوک چې پوهیږي خپل لاس دې جګ کړي. بیا دې له یوه داوطلب زده کوونکي څخه غوښتنه وکړي هغه رابطې چې شتوالي لري وواېي. ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي باید په دې پوه شي چې د ضرب او تقسیم د عملیو تر منځ رابطې شتوالي لري.

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د ۲۴=٦×۴ پوښتنې ته راواړوئ او پوښتنه وکړئ د ۴، ٦ او ۲۴ عددونه هر یو د څه شي په نامه یادیږي د هر یوه نوم واخلئ. زده کوونکي باید وواېي د ۴ عدد د ضرب لومړی جز په نامه د ٦ عدد د ضرب دویم جز په نامه او د ۲۴ عدد د ضرب د حاصل په نامه یادیږي.

- بیا دې ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د

$$\begin{array}{r|l} ۲۴ & ۴ \\ -۲۴ & ۶ \\ \hline ۰۰ & \end{array}$$

عملیې ته را وګرزوي او پوښتنه وکړئ په دې عملیه کې ۲۴، ۴ او ۶ عددونه هر یو د څه شي په نامه یادیږي نومونه یې واخلئ؟

زده کوونکي باید پوه شي او ووایې د ۲۴ عدد ته مقسوم، د ۴ عدد ته مقسوم علیه او د ۶ عدد ته د تقسیم حاصل وایې. او همدارنګه د

$$\begin{array}{r|l} ۲۴ & ۶ \\ -۲۴ & ۴ \\ \hline ۰۰ & \end{array}$$

په عملیه کې د ۲۴ عدد ته مقسوم د ۶ عدد ته مقسوم علیه او د ۴ عدد ته د تقسیم حاصل وایي په پای کې زده کوونکو ته ووایاست د دې له پاره چې پوه شي چې پوښتنه مو صحیح حل کړي ده او که نه؟ مقسوم علیه د ویش په حاصل کې ضرب کوو که چیرې مقسوم لاس ته راکړي پوښتنه صحیح ده له هغه پرته غلط ده. همدارنګه که چیرې د ضرب حاصل د ضرب په یوه جز باندې وویشو. او بل جزء راکړي پوښتنه صحیح حل شوی ده او که نه غلط ده.

**۲- مشق او تمرین:**

- ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۴) مخ ته را واړوئ چې په هغه کې د ضرب او ویش عملیې د اړوند شکلونو سره په ډیر دقت سره مطالعه کړي. ښاغلی ښوونکی دې د ګروپې کار مراقبت او څارنه کوي. که چیرې زده کوونکی ستونزي ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي. او په پای کې دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپلې مطالعې نتیجه د ټولګي په مخ کې بیان کړي.

**۳- ارزیابی:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکي ډاډ تر لاسه کړی وي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک د ?=۶×۸ د ضرب عملیه سرته رسوي او هغه آزموي؟
- څوک د ۳۲ عدد په ۴ باندې ویشي او هغه آزموي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې د تقسیم او ضرب پوښتنې حل او د یو بل په واسطه یې و ازموي:

$۲۱ \div ۷ = ?$ ، $۷ \times ۳ = ?$ ، $۱۵ \div ۳ = ?$ ، $۶ \times ۳ = ?$

**ذهنیت:**

د ضرب او تقسیم د عملیو په سرته رسولو او بیا د هغو آزمولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په ځان باور پیدا کوي او خوښی کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د ورځنۍ ژوند په معاملو کې کار ورڅخه اخلي. هغوی په پلورلو او رانیولو کې د دې عملیو په سرته رسولو او د یو بل په واسطه آزمولو سره ډاډمن کیږي. چې معامله صحیح او ټک سرته رسیدلی ده.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکی دې د کتاب د (۱۲۴) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم سرته ورسوي.

# سرليک: د ضرب او تقسيم د عمليو آزموينه د يو بل په واسطه

**څلور څلوېښتم لوست، (۱۲۵ ، ۱۲٦) مخونه**

**دويمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د ضرب او ويش عمليې د يو بل په واسطه و ازموي.

**اصطلاح ګاني:** آزمول، عمليه، ضرب او تقسيم.

**د لوست مرستندوی مواد:** د لوبيا دانې، لرګوټي او نور محيطي مواد.

**۱– فعاليتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په دري ګروپونو وويشل شي. د هر زده کوونکي کورنی دنده دې د اړوند ګروپ د غړو له خوا وليدل شي او پرتله دې شي. اشتباه ګاني په تخته باندې وليکئ. بيا د اشتباه ګانو صحيح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پيدا کړئ. له هغه پرته ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۵) مخ ته را واړوئ او ورته ووايئ د دې مخ (۱)، (۲) او (۳) شميرې پوښتنې په خپل ګروپونو کې په غور سره وګورئ د لوست له پاره د مرستندوی مواد لکه لوبيا، لرګوټي او نورو په کارولو سره حل کړئ. ښاغلی ښوونکی دې د پوښتنو له حل کولو څخه ليدنه کوي که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورته وکړئ.

**۲– مشق او تمرين:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووايئ د خپل کتاب (۱۲٦) مخ خلاص کړئ او په دقت سره مطالعه کړئ. وروسته د دې مخ د (۴) پوښتنې د حل کولو له پاره هغه مواد وکاروئ چې له ځانه سره يې لرئ او بيا يې و ازموئ.

مشق او تمرين

۱- مثال ته په پاملرني سره په تشو ځايونو کې مناسب عدد وليکئ.

مثال:

| | |
|---|---|
| ۹ -٦ ÷ ۵۴ | ۸ -۹÷ ۷۲ |
| ٦ -۹ ÷ ۵۴ | ۹ -۸ ÷ ۷۲ |
| ۵۴= ۹ × ٦ | ۷۲ = ۸ × ۹ |
| ۸ -۴ ÷ ۳۲ | ۷ -۳ ÷ ۲۱ |
| ۴ -۸ ÷ ۳۲ | ۳-۷ ÷ ۲۱ |
| ۳۲ -۸ × ۴ | ۲۱- ۷ ×۳ |

۲- تش ځايونه په مناسبو عدد و نو سره ډك کړئ.

| | | |
|---|---|---|
| ۵٦ -۷×۸ | ۷۲ -۹×۸ | ٦۳ -۹×۷ |
| ۷ -۵٦÷۸ | ۹ -۷۲÷۸ | ۹ -٦۳÷۷ |
| ۸ -۵٦÷۷ | ۸ -۷۲÷۹ | ۷ -٦۳÷۹ |

۳- په لاندې پوښتنه کې د مقسوم ، مقسوم عليه او خارج قسمت ترمنځ اړيکې په غور سره وګورئ او تش ځايونه ډك کړي.

خارج قسمت — مقسوم عليه — مقسوم

۵ = ۳ ÷ ۱۵

۱۵ = ۵ × ۳

د (مقسوم) ويشل په مقسوم عليه باندې د خارج قسمت د پيدا کولو څخه عبارت دي که چيرې خارج قسمت په (مقسوم عليه) ضرب کړو مقسوم په لاس راځي.

۱۲۵

– ښاغلی ښوونکی (۵) شميره پوښتنه لومړی ګروپ ته، (٦) شميره پوښتنه دويم ګروپ ته او (۷) شميره پوښتنه دريم ګروپ ته ورکړئ چې حل يې کړي. بيا دې له هر ګروپ څخه يو، يو تن د خپل اړوند ګروپ پوښتنه د نورو ګروپونو غړو ته په وار سره تشريح کړي.

که چيرې زده کوونکي کوم ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې لومړی، پوښتنې د موادو په واسطه توضيح کړي او وروسته دې حل کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار د جريان څخه مراقبت او څارنه کوي که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري لارښوونه دې ورته وکړي.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

– څوک د ۱٦ عدد په ۹ کې ضرب کوي او د ضرب عملیه د تقسیم د عملیې په واسطه ازموي؟

– څوک د ۲۱ عدد په ۳ باندې ویشي او د ضرب د عملیې په واسطه یې ازموي؟

**مهارت:**

زده کوونکي وکړای شي لاندې پوښتنې حل او و آزموي:

۱۵ ÷ ۵ = ?، ۴۸ ÷ ۸ = ?، ۷ × ٦ = ?

۵٦ × ۳ = ?، ۷۲ ÷ ٦ = ?، ۲۷ × ۸ = ?

**ذهنیت:**

د دې عملیو په سرته رسولو او آزمولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په ځان باور پیدا کوي روحاً تقویه کیږي او خوښي ښکاره کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د دې پوهې او مهارت څخه د ورځنې ژوند په معاملو کې کار اخلي او هم د ځان د ډاډه کیدو له پاره د ازمولو څخه کار اخلي د ځان او نورو ستونزې حل کوي.

۴ – لاندې پوښتنې حل او و آزموئ.

۹۷۰ | ۸ — ۱۲۱ (−۸، ۱۷، −۱٦، ۱۰، −۸، ۲)

٦۴۰ | ۵ — ۱۲۸ (−۵، ۱۴، −۱۰، ۴۰، −۴۰، ۰۰)

۹۷۲ | ۸ — ۱۲۱ (−۸، ۱۷، −۱٦، ۱۰، −۸، ۲)

۱۰۰ | ۹ — ۱۱ (−۹، ۱۰، −۹، ۱)

۱۰۵ | ۸ — ۱۳ (−۸، ۲۵، −۲۴، ۰۱)

۷۰٦ | ٦ — ۱۱۷ (−٦، ۱۰، −٦، ۴٦، −۴۲، ۴)

۵- د ۵ متر و تهوکر بیه ۷۵ افغانۍ ده د یوه متر تهوکر بیه معلومه کړئ؟

۷۵ | ۵ — ۱۵ (−۵، ۲۵، −۲۵، ۰۰)

٦- که چېرې یو کارګر په میاشت کې ۲۱۰ متره تهوکرو اوبې معلوم یې کړئ چې نوموړی کارګر په ۹ ورځوکې څومتره تهوکر اوبدلای شي؟

۲۱۰ | ۳۰ — ۷ (−۲۱۰، ۰۰۰)

۷- که چېرې یو مامور په یوه اونۍ کې ۵٦۰ افغانۍ تنخا (معاش) واخلي معلوم یې کړئ چې په یوه ورځ څو افغانۍ تنخالري.

۵٦۰ | ۷ — ۸۰ (−۵٦، ۰۰)

کورنی دنده

لاندې پوښتنې حل کړئ.

٦۰۹ | ۸ — ۷٦ (−۵٦، ۴۹، −۴۸، ۰۱)

٦۱۱ | ۸ — ۷٦ (−۵٦، ۵۱، −۴۸، ۰۳)




**۴– کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۱۲٦) مخ کورنی دنده د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

# سرلیک: کسر

**پنځه څلویښتم لوست، (۱۲۷ ، ۱۲۸) مخونه**

**لومړی برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی $\frac{۱}{۲}$ د یوه شي د نیمايي په توګه وپیژني او $\frac{۱}{۳}$ د یوه شي د دریمې برخې په توګه وپیژني $\frac{۲}{۳}$ د یوه شي دوه دریمی برخې په توګه وپیژني.

**اصطلاح ګانې:** کسر، نیمايي، دریمه برخه، دویمه برخه.

**د لوست مرستندوی مواد:** لښته، مڼه، د کاغذ تریشه او نور محیطي مواد.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکي په درې ګروپونو باندې وویشئ. د هر زده کوونکی کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ غړو په واسطه پرتله او وکتل شي. که چیرې کوم زده کوونکی اشتباه کړې وي. د اشتباه صحیح ځوابونه ورته تشریح کړې او د هغو پام اشتباه ګانو ته را واړوي.

– ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته وواياست ادا شکلونه چې په دویم ټولګي کې مو لوستلی دي. د هغه اړوند کسرونه د شکلونو تر لاندې ولیکئ. ښاغلی ښوونکی دې وګوري چې زده کوونکي د هر شکل تر لاندې صحیح کسر لیکلای شي او که نه؟ که چیرې زده کوونکی ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وشي.

همدارنګه لومړی ګروپ ته دې د کاغذ یوه تریشه، دویم ګروپ ته دې یوه لښته او دریم ګروپ ته دې یوه دانه مڼه او یا بله میوه ورکړل شي. چې د هر ګروپ ادا مواد په دوو مساوي برخو جلا کړي. کله چې ادا فعالیت سرته ورسوي. بیا دې ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ووایي لاندې پوښتنو ځوابونه په ګروپونو کې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

**لومړی ګروپ** د کاغذ تریشه مو په څو مساوي برخو ویشلي ده د هغه کسر ولیکئ.

**دویم ګروپ** لښته مو په څو مساوي برخو ویشلي ده د هغه

**دوولسم فصل**

**کسر**

**شپږ څلویښتم لوست:**

**هدف:** زده کوونکی $\frac{۱}{۲}$ د یوه شی د نیمایي په توګه وپیژنی او $\frac{۱}{۳}$ د یوه شی د دریمې برخې په توګه وپیژنی او $\frac{۲}{۳}$ د یوه شی دوه دریم برخي په توګه وپیژنی.

پاملرنه وکړئ:

که مونږ یوه مڼه په دوو مساوي برخو وويشو په حقیقت کې مومڼه نیمایې کړې ده چې په ریاضي کې داسې لیکل کیږي: $\frac{۱}{۲}$

که مونږ یوه مڼه په درې مساوي برخو وويشو او له هغه څخه یوه برخه واخلو دا یو دریمه برخه داسې ښودل کیږي. $\frac{۱}{۳}$






که چیرې اوس د مڼې له دریو برخو څخه یوه برخه په یوه غاب کې او دوه برخې یې په بل غاب کې کښېږدو داسې لیکو:

الف: $\frac{۱}{۳}$ برخه په یوه غاب کې $\frac{۱}{۳}$

ب: $\frac{۲}{۳}$ برخې په بل غاب کې $\frac{۲}{۳}$

۱۲۷

اړوند کسر ولیکئ.

**دریم ګروپ** مڼه مو په څو مساوي برخو ویشلي ده د هغه اړوند کسر ولیکئ.

– کله چې له زده کوونکو څخه صحیح ځوابونه واوریدل شي او معلوم شي چې زده کوونکو تر کومې اندازې په دویم ټولګي کې له کسر سره پیژندګلوي پیدا کړې ده. بیا دې له لومړی ګروپ څخه د کاغذ د تریشې $\frac{۱}{۲}$ برخه وغواړي په همدې ډول له نورو ګروپونو څخه دې هم $\frac{۱}{۲}$ برخه د شیانو وغواړي. او بیا دې زده کوونکو ته ووایي خپل ګروپي کار چې په عملي توګه یې په موادو باندې سرته رسولي ده په خپل میز باندې کښیږدي او د هر مواد تر لاندې دې اړوند کسر ولیکي. ښاغلی ښوونکی! د دې کار د فعالیت او سرته رسولو د ترتیب د جریان لیدنه او څارنه وکړئ. که چیرې زده کوونکي د ستونزو سره مخامخ کیږي. مرسته او لارښوونه وکړئ. هغه تشویق کړئ. او نور فعالیتونه د زده کوونکو په واسطه سرته ورسوي.

– ښاغلی ښووونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۷)

مخ ته را واړوئ. او ورته وواياست د کتاب مخ په دقت سره مطالعه کړئ. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن له دې مخ څخه اخستې مطلب په عملي توګه د موادو په واسطه د ټولګی په مخ کې نورو ته تشریح کړي. که چیرې زده کوونکي په تشریح کولو کې ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۲- مشق او تمرین:**

- ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۸) مخ ته را وګرزوئ چې شکلونه له اړوند کسرونو سره وګوري. په خپلو ګروپونو کې خبرې او اترې وکړي. بیا دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن شکلونه له اړوند کسرونو سره په تخته باندې تشریح کړي. ښاغلی ښوونکی په دقت سره وګوري که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ تر لاسه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک د کاغذ د تریشي $\frac{۱}{۳}$ برخه ښیي؟
- څوک د کاغذ د تریشي یا د لبنتې $\frac{۲}{۳}$ برخه ښیي؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي د موادو په کارولو سره لاندې کسرونه وښیي:

$\frac{۱}{۲}$ برخه د یوه شي، $\frac{۱}{۳}$ برخه د یوه شي او $\frac{۲}{۳}$ برخه د یوه شي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د کسر په پیژندلو سره خوشحالیږي په ذهن کې بدلون را منځ ته کیږي.

**ارزښت:**

کله چې زده کوونکي د یوه شي نیمایي، یوه دریمه برخه،

د لاندې شکلونو اړوند کسرونو ته پاملرنه وکړئ.




د الف په شکل کې د $\frac{۱}{۲}$ کسر ښیي چې د دوو برخو څخه یوه برخه یې جلا شوې ده.

د (ب) په شکل کې د $\frac{۱}{۳}$ کسر ښیي چې له دریو برخو څخه یوه برخه یې جلا شوې ده.

د (ج) په شکل کې د $\frac{۱}{۴}$ کسر ښیي چې له څلورو برخو څخه یې یوه برخه جلا شوې ده.

د (د) په شکل کې د $\frac{۱}{۶}$ کسر ښیي چې له شپږو برخو څخه یوه برخه جلا شوې ده.

د دې دپاره چې تا سو د یوه کسر د لیکلو سره ښه پیژند ګلوي پیدا کړئ لاندې کسر ته پاملرنه وکړئ.

$\frac{۲}{۵}$

د کسر صورت

کسري خط یا د برخط

د کسر مخرج




دوه دریمې برخې په حسابي ډول سره یعنی د ($\frac{۱}{۲}$، $\frac{۱}{۳}$ او $\frac{۲}{۳}$) په شکل باندې یوه شي هغوی کولی شي یو شي په مساوي توګه په همدې کسري برخو سره وویشي، د یوه شي کسری برخه وټاکي. او همدارنګه د دې کسري برخو په پوهیدو سره په راتلونکو ټولګیو کې هم له ستونزو سره مخامخ کیږي.

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکو دې د $\frac{۳}{۵}$ ، $\frac{۱}{۲}$ او $\frac{۲}{۳}$ کسرونه په نظر کې ونیسي د هغو اړوند شکلونه دې په خپلو کتابچو کې رسم کړي له ځانو سره دې راوړي.

# سرلیک: کسر

**پنځه څلویښتم لوست، (۱۲۹ ، ۱۳۰) مخونه**

**دویمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی $\frac{۱}{۲}$ د یوه شي د نیمایي په توګه وپیژني او $\frac{۱}{۳}$ د یوه شي د دریمې برخې په توګه وپیژني $\frac{۲}{۳}$ د یوه شي دوه دریمې برخې په توګه وپیژني.

**اصطلاح ګاني:** کسر، نیمایي، یو دریمه برخه، دوه دریمه برخه.

**د لوست مرستندوی مواد:** لښته، منه، د کاغذ تریشه او نور محیطي مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي په دریو ګروپونو باندې وویشه، د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو په واسطه پرتله او وکتل شي که چیرې زده کوونکو په شکلونو کې د کسر په ښودلو کې اشتباه کړې وي. د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه دې د زده کوونکو یا ښاغلی ښوونکی په واسطه پیدا شي او تشریح دې شي. او هغوی دې خپلو اشتباه ګانو ته متوجه شي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته وواياست. لاندې کسرونه چې په دویم ټولګی کې مو لوستلي دې د هر کسر، صورت او مخرج وښیاست ولولي، د اړوند کسر صورت او مخرج ولیکئ.

$\frac{۴}{۵}$ ، $\frac{۳}{۴}$ ، $\frac{۲}{۳}$

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۲۹) مخ ته را وګرزوئ چې د کتاب دا مخ خلاص او مطالعه یې کړي. بیا دې (۱) او (۲) ګڼې پوښتنې په خپلو ګروپونو کې د کتاب له هدایت سره سم په عملي توګه کار وکړي. که چیرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي ښاغلی ښوونکی دې د هغوی د کار له لیدلو وروسته مرسته او لارښوونه وکړي.

۱_ د لاندې شکلونو د تورې شوو، او سپینو برخو، کسري برخې په خپلو کتابچو کې وښیاست او ویې لیکئ.

$\frac{۱}{۲}$ توره — $\frac{۱}{۲}$ سپینه — $\frac{۱}{۳}$ سپینه — $\frac{۲}{۳}$ توره

لاندې جدول بشپړ کړئ

| مخرج | صورت | کسر |
|---|---|---|
| ۲ | ۱ | $\frac{۱}{۲}$ |
| ۳ | ۲ | $\frac{۲}{۳}$ |
| ۵ | ۳ | $\frac{۳}{۵}$ |
| ۵ | ۴ | $\frac{۴}{۵}$ |
| ۶ | ۵ | $\frac{۵}{۶}$ |

کورنۍ دنده

د $\frac{۲}{۵}$ ، $\frac{۴}{۵}$ ، $\frac{۲}{۳}$ په کسرونو کې صورت او مخرج ولیکئ.

۱۲۹

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی اوس د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۰) مخ ته راواړوئ چې د کتاب مخ خلاص کړي د هغه مخ (۳)، (۴) او (۵) شمیره پوښتنې په ډیر غور سره مطالعه کړي. او د کتاب له هدایت سره کار وړباندې وکړي او حل یې کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې د ګروپي کار د جریان لیدنه او څارنه وکړي که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورسره وکړئ.

**۳– ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وشي.

**پوهه:**

– څوک وایې چې دا شکل  په څو مساوي برخو ویشل شوي دی او څومه برخه یې توره شوی ده؟

– څوک په یوه کسر کې صورت او مخرج ښیې؟

**مهارت:**

زده کوونکی وکړای شي لاندې کسري برخې په کسر سره ولیکي:

– د یوه شی دوه دریمه برخې، د یوه شي یوه دریمه برخه، د یوه شي یوه څلورمه برخه، د یوه شي دوه څلورمه برخې.

**ذهنیت:**

د کسر د صورت او مخرج په پیژندلو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د یوه شي ویشل په مساوی برخو سره او د هغو ښودل په شکلونو کې په ورځنۍ ژوند کې کار ورځخه اخلي هغوی توانیږي یو شئ په مساوي توګه څو تنو ته یا په څو برخو وویشي یعنی کومه برخه کمه او زیاته نشي. په صحیح توګه یې په څو برخو وویشي.

**۴– کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دي د (۱۲۹ او ۱۳۰) مخونو کورنۍ دندې د کتاب له هدایت سره سم حل او له ځانو سره راوړي.

۳ـ له لاندې جدول څخه کسرونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| صورت | ۱ | ۲ | ٦ | ۵ | ۴ | ۳ |
| مخرج | ٦ | ۵ | ۷ | ۸ | ۷ | ۴ |
| اړوند کسر | ۱/٦ | ۲/۵ | ٦/۷ | ۵/۸ | ۴/۷ | ۳/۴ |

۴ـ وم شکل په دوو مساوي برخو ویشل شوی دی د هغه اړوند کسر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.







۵ـ کوم شکل په دری مساوی برخو ویشل شوی دی د هغه اړوند کسر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.







کورنۍ دنده

د ۱/۳ ، ۲/۳ ، ۱/۴ کسر د شکلونو په واسطه په خپلو کتابچو کې وښیاست.



## سرلیک: کسر

**پنځه څلویښتم لوست، (۱۳۱، ۱۳۲ او ۱۳۳) مخونه**

**دریمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکی $\frac{۱}{۲}$ د یوه شي د نیمایي په توګه وپیژني او $\frac{۱}{۳}$ د یوه شي د دریمې برخې په توګه وپیژني $\frac{۲}{۳}$ د یوه شي دوه دریمې برخې په توګه وپیژني.

**اصطلاح ګاني:** د $\frac{۱}{۲}$، $\frac{۱}{۳}$، $\frac{۲}{۳}$ کسرونه، نیمایي، دریمه برخه، دویمه برخه

**د لوست مرستندوی مواد:** کسری شکلونه، د کاغذ تریشه.

**۱ – فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی په درې ګروپونو وویشئ. ګروپونو ته دنده ورکړئ چې د هر زده کوونکي په کورنی دندې باندې اړوند ګروپونه خبرې اترې وکړي، اشتباه ګاني پیدا کړي او بیا د اشتباه ګانو صحیح ځوابونه د زده کوونکو په واسطه پیدا کړی که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورته وکړئ.

– ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۱) مخ ته را وګرزوی (٦)، (۷) او (۸) شمیرې پوښتنې دې د اړوند شکلونو سره په نظر کې ونیسي. او تش ځایونه دې په مناسب عددونو سره ډک کړي.

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو د کار او د پوښتنو د حل کولو جریان ته پاملرنه وکړئ. چې زده کوونکي پوښتنې صحیح حل کوي. او که نه؟ که چیرې زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه ورته وکړئ. په پای کې دې له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ کار و نورو ګروپونو ته تشریح کړي.

– ښاغلی ښوونکی! متوجه اوسئ چې په (٦) پوښتنه کې د (ج) او (و) په جز کې هدف (۴) مساوي برخې دي. ښاغلی ښوونکی کله چې ډاډمن شوي چې زده کوونکو د (۱۳۱) مخ پوښتنې حل کړی او په مفهوم باندې پوه شوی دي بیا زده کوونکو ته ووایاست چې د کتاب (۱۳۲) مخ

٦ـ په لاندې شکلونو کې کوم یوه ته $\frac{۱}{۴}$ د کسر لیکلی شو. د هغه کسر ولیکئ.

د ب شکل ته لیکلای شو — الف — ب — ج — هــ — د هــ شکل ته لیکلای شو

د (د) شکل ته $\frac{۱}{۴}$ لیکلای شو — د — هــ — و

۷ـ په لاندې شکلونو کې د رنګ شوي برخو او سپنیو برخو کسرونه، د نمونې په ډول په تش ځایونو کې ولیکئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مساوي برخې | ۲ | مساوي برخې | ۴ | مساوي برخې | څلور |
| رنګ شوې برخې | $\frac{۱}{۲}$ | رنګ شوی | $\frac{۱}{۴}$ | رنګ شوی | $\frac{۳}{۴}$ |
| سپینې برخې | $\frac{۱}{۲}$ | رنګ شو نه دي | $\frac{۳}{۴}$ | سپینه | $\frac{۱}{۴}$ |
| ج | | ب | | الف | |

۸ـ لاندې شکلونو ته پاملرنه وکړئ.

| | الف | | ب | | ج |
|---|---|---|---|---|---|
| مساوي برخې | ۸ | مساوي برخې | نه | مساوي برخې | ۹ |
| رنګ شوی برخې | $\frac{۳}{۸}$ | رنګ شوی برخې | $\frac{۱}{۹}$ | رنګ شوی برخې | $\frac{۷}{۹}$ |
| سپینې برخې | $\frac{۵}{۸}$ | سپینې برخې | $\frac{۸}{۹}$ | سپینې برخې | $\frac{۲}{۹}$ |

۱۳۱

خلاص او مطالعه یې کړئ د دې مخ (۹) او (۱۰) ګڼې پوښتنې د اړوند شکلونو سره په نظر کې ونیسئ. او تش ځایونه په مناسب عددونو سره ډک کړئ.

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو د ګروپی کارونو څخه لیدنه وکړي که چیری ستونزې ولري مرسته ورسره وکړئ. همدارنګه ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۰) پوښتنې د شکلونو کسرونو ته را وګرزوي چې د ښې خوا او کیڼې خوا پوښتنې یو له بله سره پرتله کړي.

**۲ – مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی دې د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۳) مخ ته را وګرزوي. او د کتاب نومورې مخ دې د (۴) دقیقو له پاره په غور سره مطالعه او ولولي.

– بیا دې ښــاغلی ښوونکی له یوه زده کوونکی څخه پوښتنه وکړي د جدول د دویمې لیکې $\frac{۲}{۳}$ او $\frac{۱}{۳}$ کسرونه د اړوند شکلونو له مخې ووایاست چې کوم یو یې کوچنی

۹. لاندې هر یو شکل په خپلو کتابچو کې رسم کړئ د هر شکل د اړوند کسر په نظر کې نیولو سره د هغه برخې په خپلو کتابچو کې تورې کړئ.



۱۰. د حل شوي مثال په ډول د لاندې شکلونو د رنګ شوي برخو کسر کیڼې خواته او د سپینو برخو کسر ښي خواته ولیکئ.



۱۳۲

۱۱. د لاندې شکلونو د رنګ شوي برخو او سپینې برخو اړوند کسرونه په غور سره وګورئ. د اړوند شکل په کارولو سره، لوی کسر او کوچنی کسر په شفاهي توګه وښیاست.



کورنۍ دنده

د $\frac{۲}{۳}$، $\frac{۲}{۵}$، $\frac{۲}{۷}$، $\frac{۲}{۸}$ او $\frac{۲}{۹}$ کسرونه د شکل په رنګ کولو سره وښیاست.

ځواب: د زده کوونکو عملي کار ده.

۱۳۳

او کوم یو یې لوی دئ. په همدې ډول لږ تر لږه له شپږو زده کوونکو څخه دې د جدول د ښي او کیڼې خواوو کسرونو ځوابونه تر لاسه کړي صحیح ځوابونه دې پیدا کړي. که چیرې کوم زده کوونکی له ستونزو سره مخامخ شي (اشتباه وکړي) لارښوونه ورته وکړئ.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوښنه:**

- څوک د $\frac{۱}{۴}$ او $\frac{۲}{۴}$ کسرونه په شکلونو کې ښيې د شکل له مخې وایې کوم یو یې کوچنی او کوم یو یې لوی دئ؟

- څوک د $\frac{۲}{۳}$ او $\frac{۳}{۳}$ کسرونه په شکل کې ښيې؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د $\frac{۲}{۳}$ او $\frac{۱}{۳}$ کسرونه په شکل کې وښیي.

- زده کوونکي وکړای شي د ◔ شکل د سپین او رنګه برخې په کسر سره ولیکي.

**ذهنیت:**

د کسرونو په پیژندلو او پوهیدلو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي او خوښي کوي.

**ارزښت:**

زده کوونکي د کسرونو په پوهیدلو سره کولی شي د کور غولي د مختلفو شیانو د کرلو له پاره په مساوی برخو وویشي او هغه د ګلانو د کرلو له پاره ترتیب کړي.

**۴- کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۱۳۳) مخ کورنۍ دنده د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

# سرليک: کسر

**پنځه څلويښتم لوست، (۱۳۴ ، ۱۳۵) مخونه**

**څلورمه برخه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقيقه يې)**

**هدف:** زده کوونکی $\frac{۱}{۲}$ د يوه شئ د نيمايي په توګه وپيژني او $\frac{۱}{۳}$ د يوه شئ د دريمې برخې په توګه وپيژني $\frac{۲}{۳}$ د يوه شئ دوه دريمی برخې په توګه وپيژني.

**اصطلاح ګاني:** $\frac{۱}{۴}$، $\frac{۳}{۴}$، $\frac{۱}{۸}$ او $\frac{۹}{۸}$ کسرونه.

**د لوست مرستندوی مواد:** کسرونه، مربع، مستطيل، دايرې، مثلث، شکلونه چې په مختلو سپينو او رنګه برخو ويشل شوي وي.

**۱- فعاليتونه:**

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکي دې په درې برخو وويشل شي. د هر زده کوونکي کورنۍ دنده دې د اړوند ګروپ د غړو په واسطه وليدل شي. د اشتباه ګانو صحيح ځوابونه دې په تخته باندې تشريح شي. که چيرې زده کوونکي ستونزې ولري ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

- ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې د خپل کتاب (۱۳۴) مخ خلاص کړي او په اړوند ګروپونو کې د (۱۱)، (۱۲) او (۱۳) ګڼې پوښتنې په نظر کې ونيسئ د اړوند کسرونو په نظر کې نيولو سره د هغو شکلونه رسم کړي. او د هر کسر اړوند برخې توري کړئ.

- ښاغلی ښوونکی! د ګروپی کارونو څارنه وکړئ. که چيرې زده کوونکی په ګروپونو کې ستونزې ولري مرسته ورسره وکړئ. بيا دې له هر ګروپ څخه يو، يو تن د خپل ګروپ کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي.

- ښاغلی ښوونکی! د (۱۳۴) مخ (۱۴) او (۱۵) ګڼې پوښتنې دې زده کوونکی د کتاب له هدايت سره سم حل کړي. شکلونو ته دې وګوري د هغو اړوند کسرونه دې د شکلونو ښي او کيڼې خوا ته وليکي.

۱۲. د $\frac{۳}{۵}$ ، $\frac{۳}{۷}$ ، $\frac{۳}{۸}$ او $\frac{۳}{۹}$ کسرونه د شکل د رنګ کولو په واسطه وښياست.

$\frac{۳}{۹}$ $\frac{۳}{۸}$ $\frac{۳}{۷}$ $\frac{۳}{۵}$

۱۳. د $\frac{۴}{۵}$ ، $\frac{۴}{۶}$ ، $\frac{۴}{۷}$ ، $\frac{۴}{۸}$ او $\frac{۴}{۹}$ کسرونه په شکل کې وښياست.

$\frac{۴}{۹}$ $\frac{۴}{۸}$ $\frac{۴}{۷}$ $\frac{۴}{۶}$ $\frac{۴}{۵}$

۱۴. د $\frac{۵}{۶}$ $\frac{۵}{۷}$ $\frac{۵}{۸}$ او $\frac{۵}{۹}$ کسرونه د شکل د رنګ کولو په واسطه يې وښياست. رنګ شوي او سپينې برخې سره پرتله کړئ د >،< او - ښنو په واسطه يې وښياست.

$\frac{۵}{۹}$ $\frac{۵}{۸}$ $\frac{۵}{۷}$ $\frac{۵}{۶}$

$\frac{۵}{۹} > \frac{۴}{۹}$ $\frac{۵}{۸} > \frac{۳}{۸}$ $\frac{۵}{۷} > \frac{۲}{۷}$ $\frac{۵}{۶} > \frac{۱}{۶}$

۱۵. د لاندې شکلونو د رنګ شوي برخو کسر ښئ خواته او د سپينو برخو اړوند کسر کيڼې خواته وليکئ.

$\frac{۳}{۹}$ $\frac{۶}{۹}$

$\frac{۲}{۹}$ $\frac{۷}{۹}$

$\frac{۱}{۹}$ $\frac{۸}{۹}$

۱٦. د لاندې شکلونو د رنګ شوي برخو کسر ښئ خواته او د سپينو برخو کسر کيڼې خواته وليکئ او يو له بله سره يې پرتله کړئ.

$\frac{۱}{۹}$ $\frac{۸}{۹}$

$\frac{۱}{۹}$ $\frac{۸}{۹}$

کورنی دنده

د لاندې شکل د رنګ شوی برخو کسر کيڼې خواته او د سپينو برخو کسر ښی خواته وليکی او پرتله يې کړی.

$\frac{۸}{۹}$ $\frac{۱}{۹}$

$\frac{۸}{۹} > \frac{۱}{۹}$

۱۳۴

**۲- مشق او تمرين:**

- ښاغلی ښوونکی! د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۵) مخ ته را وګرزوئ (۱) او (۲) شميره پوښتنې لومړی ګروپ ته، (۳) او (۴) شميره پوښتنې دويم ګروپ ته او (۵)، (٦) شميری پوښتنې دريم ګروپ ته ورکړئ چې په خپل ګروپونو کې د کتاب له هدايت سره سم کار وکړي. بيا دې له هر ګروپ څخه يو، يو تن په وار سره د خپل ګروپ کړی کار د نورو ګروپونو غړو ته تشريح کړي. که چيرې زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کيږي ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

**۳- ارزونه:**

د دې له پاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډ تر لاسه کړي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

- څوک د $\frac{۴}{۵}$ او $\frac{۴}{۹}$ کسرونو توپیر په شکلونو کې ښيي؟
- څوک د $\frac{۵}{۷}$ او $\frac{۵}{۸}$ کسرونو توپیر د شکلونو په واسطه ښيي؟

**مهارت:**

- زده کوونکي وکړای شي د $\frac{٦}{۹}$ کسر په شکل کې وښيي.
- زده کوونکی وکړای شي د $\frac{٦}{۸}$ کسر په شکل کې وښيي.
- زده کوونکی وکړای شي د $\frac{٦}{۹}$ او $\frac{٦}{۸}$ کسرونه د شکلونو له مخې پرتله لوی او کوچنی کسر وښيي.

**ذهنیت:**

زده کوونکي د کسرو په پوهیدلو او د هغو له پرتله کولو څخه خوښي ښکاره کوي او په بشپړ توګه د هغوي ذهن بدلون مومي.

**ارزښت:**

کله چې زده کوونکی کسرونه وپیژني او پرتله یې کړي هغوی کولی شي یو شي په څو مساوي برخو وویشي او هر چا ته خپله برخه ورکړي. او په راتلونکی ټولګیو کې د کسرونو د څلور ګروپونو په عملیو کې له ستونزو سره نه مخامخ کیږي. خپل او د نورو ستونزي حل کوي.

**۴- کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د کتاب د (۱۳۴) او (۱۳۵) مخونو کورنی دندې د کتاب له هدایت سره سم حل کړي.

**پوښتنې:**

۱ـ احمد د یوه مستطیل کاغذ څخه $\frac{۱}{۳}$ برخه پریکړه، تاسو هم دا کار په عملي توګه سرته ورسوي او ووایاست چې څومره برخه یې پاتې ده په کسر سره یې وښیاست.

ځواب: $\frac{۲}{۳}$ یې پاتې ده.

۲ـ کریم یوه دایره په دري مساوی برخو وویشله او $\frac{۲}{۳}$ برخې د هغې یې توره کړه څومه برخه یې سپینه پاتي ده د رسم په واسطه یې وښیاست. ځواب: $\frac{۱}{۳}$ پاتي ده.

۳ـ د لاندې شکلونو د رنګ شوو او سپینو برخو کسر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

ځواب: $\frac{۵}{۸}$ سپینی $\frac{۳}{۸}$ برخې رنګ شوي دی $\frac{٦}{۸}$ سپینی $\frac{۲}{۸}$ برخې رنګ شوي دی

۴ـ یو لیتر اوبه څو ګیلاسه کیږي ؟ ځواب: ۴ ګیلاس کیږي.

۵ـ یوه دایره رسم کړئ $\frac{۱}{۴}$ برخه د هغې توره کړئ. ځواب: $\frac{۱}{۴}$

٦ـ له یوه ګیلن اوبو څخه یو لیتر اوبه څرنګه جلا کوئ ؟

ځواب: د ۴ ګیلاسونو په واسطه یو لیتر جلا کوو.

کورنی دنده

یو مستطیل رسم کړئ چې اوږدوالی یې ٦ سانتي متر او سور یې ۳ سانتي متره وي او بیا د هغې $\frac{۱}{۲}$ برخه توره کړئ.

۶ سانتی متره

۳ سانتی متره

$\frac{۱}{۲}$ برخه توره شوی ده.

۱۳۵

# سرلیک: د پوښتنو په برخه کې د کتاب عمومي تکرار

**(۱۳۵ ، ۱۳۶) مخونه**

**وخت: ۲ ساعته (۴۵ دقیقه یې)**

**هدف:** زده کوونکي وکړای شي د کتاب له هرې برخې څخه یو شمیر پوښتنې حل کړي.

**اصطلاح ګانې:** د >، < او =، نښې.

**د لوست مرستندوی مواد:** وزنونه یا د هغو مودلونه، چارتونه او نور محیطي مواد.

**۱– فعالیتونه:**

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکی په درې ګروپونو باندې وویشئ. زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د هر زده کوونکي کورنۍ دنده په خپل ګـــروپونو کـــې وګورئ. هغه چا چـــې اشتباه کـــړي ده اشتباه ګـــانې دې د اړوند ګروپ د غړو له خوا صحیح شي. که بیا هم زده کوونکي ستونزې ولري. ښاغلی ښوونکی دې مرسته او لارښوونه وکړي.

– ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته ووایاست چې د خپل کتاب (۱۳۵) مخ خلاص کړي. له (۷) څخه تر (۱۲) شمیرې پوښتنې پورې دې په غور سره په خپل ګروپونو کې مطالعه کړي بیا دې (۷) او (۸) شمیرې پوښتنې لومړي ګروپ ته، (۹) او (۱۰) شمیرې پوښتنې دویم ګروپ ته همدارنګه (۱۱) او (۱۲) شمیرې پوښتنې دې دریم ګروپ ته ورکړي. چې په خپل ګروپونو کې حل کړي بیا دې په وار سره له هر ګروپ څخه یو، یو تن د خپل ګروپ اړوند پوښتنې د نورو ګروپونو غړو ته تشریح کړي. ښاغلی ښوونکی دې د کار او پوښتنو د حل کولو څخه لیدنه کوي. که چیری زده کوونکي ستونزې ولري مرسته او لارښوونه دې وکړي.

۷ـ د >،< او- نښو په کارولو سره لاندې درکړل شوي وزنونه سره پرتله کړئ.

الف: ۵۰۰ ګرامه [<] ۲ کیلو ګرامه

ب: ۳ کیلو ګرامه [>] ۳۰۰ ګرامه

ج: ۷۵۰ ګرامه [>] نیم کیلو ګرامه

د: ۲۵۰ ګرامه [<] ۷۵ ګرامه+ ۱۰۰ ګرامه + ۲۵ ګرامه

۸ـ یوه پخوونکی ۷۵۰ ګرامه وریجې درلودلې چې ۴۵۰ ګرامه د هغو څخه پخې کړلي معلوم یې کړی چې څو ګرامه وریجې پاتې دي.

۷۵۰
− ۴۵۰
۳۰۰

۹ـ یوه ډوډې پخوونکی یو کیلو ګرام خمیره درلودله چې له ۳ ورځو څخه وروسته ۲۵۰ ګرامه خمیره ور سره پاتي وه معلوم کړی چې په دری ورځو کې یې څومره خمیره مصرف کړی ده؟

۱۰۰۰ ګرام = ۱ کیلوګرام
− ۲۵۰
۷۵۰ ګرام مصرف کړی ده.

۱۰ـ یوي مور ۵ کیلو ګرامه وریجې، ۵۰۰ ګرامه بوره ، ۲۵۰ ګرامه غوړي او ۲۵۰ ګرامه لوبیا راونیول. د مور د کڅوړي د شیانو وزن معلوم کړئ.

۵۰۰۰ = ۵ کیلوګرام
۵۰۰ ګرامه
۲۵۰ ګرامه
۲۵۰ ګرامه +
۶۰۰۰ ګرامه = ۶ کیلوګرام

۱۱ـ لاندې شیان دځه شئ په واسطه اندازه کیږي ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

الف: نفت [د لیتر]

ب: دوره لوړوالی [د متر]

ج: اوبه [د لیتر]

د: بوره [د کیلوګرام]

۱۲ـ که چیري یو لوښئ د ۱۲ معمولي ګیلاسونو او بوځای ولري. معلوم یې کړئ چې په نوموړی لوښي کې څو لیتره اوبه ځائیږي. ځواب: ۳ لیتره = ۴ ÷ ۱۲

۱۳۶

**۲– مشق او تمرین:**

– ښاغلی ښوونکی د زده کوونکو پام د کتاب (۱۳۶) مخ ته را واړوئ بیا د دې مخ (۱۳) او (۱۴) شمیري پوښتنې لومړي ګروپ ته، (۱۵) او (۱۶) شمیري پوښتنې دویم ګروپ ته او همدارنګه (۱۷) او (۱۸) شمیرې پوښتنې دریم ګروپ ته ورکړي په ګروپي ډول کار وکړي او حل یې کړئ. بیا د یوه ګروپ پوښتنې بل ګروپ ته ورکړی یعنی پوښتنې دې بدلې شي. او بیا دې د یوه ګروپ کار د بل ګروپ په واسطه وکتل شي. که چیری کوم ګروپ اشتباه کړې وي د یوه تن په واسطه دې په صحیح توګه پرتخته حل شي. چې نوموړی ګروپ خپل اشتباه ته پاملرنه وکړي. او په راتلونکی کې اشتباه ونه کړي.

– ښاغلی ښوونکی دې د کار مراقبت او څارنه کوي که چیري زده کوونکي له ستونزو سره مخامخ کیږي مرسته او لارښوونه وکړئ.

**۳– ارزونه:**

د دې لــه پــاره چې ښاغلی ښوونکی ډاډمن شــي چې زده کوونکو نوی لوست زده کړی دی او که نه؟ له زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي د ستونزو په صورت کې دې له هغو سره مرسته او لارښوونه وکړي.

**پوهه:**

څوک د لاندې عبارتي پوښتنې رياضيکی افاده ليکي:

– که چيرى د يوه خوراک ډوډۍ بيه ۳۰ افغانۍ وي د ۲۵ خوراکو ډوډۍ بيه څو افغانۍ کيږى؟

**مهارت:**

– زده کوونکی وکړای شي عبارتي پوښتنې په روان توګه ولولي او په مفهوم يې پوه شي.

– زده کوونکی وکړای شي د عبارتي پوښتنو د رياضی افاده وليکي او حل يې کړي.

**ذهنيت:**

د عبارتي پوښتنو له لوستلو، حل کولو او صحيح ځواب په پيدا کولو سره د زده کوونکو ذهن بدلون مومي په ځان باور پيدا کوي او احساس د خوښی کوي.

**ارزښت:**

د عبارتي پوښتنو لوستل، د رياضي افادې په شکل راوړل د زده کوونکو له پاره ډير ارزښت لري. هغوی له دې زده کړې او پوهې څخه د ورځنۍ ژوند په معاملو کې کار اخلي د خپل ځان او نورو ستونزې حل کوي.

۱۳ـ د لوست مواد او لوازم چې لاندې اندازې ولري وښياست ؟

الف : له ۹ سانتيمترو څخه لږ وي. د کتابچې بر

ب : د يوه متر په حدود کې وي. تقريباً د ميز اوږدوالی.

ج : د ۱۰ او ۲۰ سانتي مترو په منځ کې وي. تقريباً د قلم اوږدوالی.

---

۱۴ـ د ۳ سانتي مترو، ۷ سانتي مترو او ۱۲ سانتي مترو په اندازه خطونه رسم کړئ.

۳ سانتي متر ۷۳ سانتي متر

---

۱۵ـ د هر غوری ډوډۍ له پاره ۳ منې لرونکی يوه غاب ته اړتيا ده. که چيرې ۲۱۰ دانې منې ولرو څو دانې غوري او څو دانو غابونو ته اړتيا ده ؟

۲۱۰ | ۳
−۲۱ | ۷۰
۰۰

---

۱٦ـ د ٦ دانو قلمونو بيه ٦٦ افغانۍ دي د ۷ دانو قلمونو بيه معلوم کړئ؟

٦٦ | ٦
−٦ | ۱۱
٦
−٦
۰

۷۷ = ۷ × ۱۱ د يوه قلم بيه ۱۱ افغانۍ دی.

---

۱۷ـ زرغونه اوس ۱۲ کلنه ده که چېرې له ۳ کلو وروسته د هغې عمر د مور د عمر نيمايې شي د زرغونې د مور اوسنۍ عمر معلوم کړئ.

ځواب: د مور عمر يې ۳۰ کاله = ۲ × ۱۵، درې کاله وروسته د زرغونې عمر ۱۵=۳+۱۲

---

۱۸ـ که چېرې احمد د ورځې ۹ افغانۍ سپما وکړي. د هغه د يوې مياشتې او يو ه کال د سپما اندازه معلومه کړئ.

ځواب: ۲۷۰ افغانۍ = ۹ × ۳۰ د يوې مياشتې سپما

۳۲۴۰ = ۲۷۰ × ۱۲ د يوه کال

۲۷۰
× ۱۲
۵۴۰
+ ۲۷۰
۳۲۴۰

---




**۴– کورنۍ دنده:**

که چيرى زده کوونکی وخت ولري له پيل څخه تر پای پورې دې کتاب تکرار کړي که چيرى په کوم ځای يا موضوع يا پوښتنو کې ستونزې ولري، سبا ته دې ښاغلی ښوونکي ته ووايې چې مرسته او لارښوونه ورته وکړي.